

# سپینه کوتره

زړه سواند شینواری

# سپینه کوتره

## د ماشومانو له پاره انتباهي کیسې




لیکوال
حبیب الله زړه سواند



د کتاب نوم : سپینه کوتره.

لیکوال : حبیب الله زړه سواند شینواری.

خپروونکې : د اریك د ګرځنده کتابتونونو اداره.

کمپوز کوونکی : امان الله رفیع.

د خپرېدو کال : ۱۹۹۹/۱۳۷۸.

د چاپ ځای : پېښور.

**د پښتي د انځور عکاسي: د فقید لویس دوپري**



اریک له دوو کلونو راهیسې د افغانستان بېلا بېلو ولایاتو ته د ګرځنده کتابتونونو د لېږلو پروګرام جوړ کړی دی؛ ګرځنده کتابتونونه د اوسپنیزو صندوقونو په بڼه جوړ شوي، د هېواد په یوه برخه کښې په یوه خانګړي ځای کښې اېښودل کېږي، د سیمې خلک راځي کتابونه په امانته توګه اخلي، لولي یې خپلو شااوخوا نالوستو کسانو ته یې اوروي، بیا یې بېرته راوړي او په بدل کښې یې بل کتاب اخلي او په دې ترتیب په سیمه کښې د کتابتون ټول کتابونه لوستل کېږي او بیا دا ګرځنده کتابتون یوې بلې سیمې ته وړل کېږي.

موږ هڅه کړې دې کتابتون ته داسې کتابونه راغونډ کړو چې له یوې خوا یې ژبه ساده او اسانه او له بلې خوا د خلکو د استفادې او اړتیاوړ خبرې او مطالب ولري او له دوی سره د دوی په روان ژوند کښې عملي مرسته وکړي، لکه د کرنې، لاسي کارونو، چرګانو روزنې او نورو چارو کښې.

موږ په دې ترڅ کښې د اسروي هم کوو چې خلک نورو کومو آثارو او کوم ډول موادو ته اړه لري، چې په دې لړ کښې مو د دوی ګڼې غوښتنې او د اړتیا وړ مواد لست کړل خو متأسفانه په دې برخه کښې مو کتابونه ونه موندل چې د دوی په

لومړی

ګرځنده کتابتونونو کښې يې ځای پر ځای کړو.

د دې تشې د ډکولو له پاره مو يو کال وړاندې "يو نو چا" ته وړانديز وکړ چې مالي مرسته وکړي او موږ د دې ګرځنده کتابتونونو له پاره په خپله يو شمېر د اړتياوړ کتابونه چاپ کړو او د خلکو غوښتنو ته په خپل لاس د عمل جامه ورواغوندو. هغوی زموږ وړانديز ومانه او يو موټی پيسې يې راکړې. موږ د دې له پاره چې کار سيستماتيك او ښه ګټور شي دې کار ته د تهيې يوه ډله و ټاکله چې هم زموږ د اداري غړی پکښې دي او هم د هېواد يو شمېر مجرب او له دې کار سره علاقمند ليکوال او مؤلفين. چې په ګډه به کار کوي، د اړتيا وړ کتابونه به يا په خپله او يا د هغو ليکوالو په وسيله چې په ټاکلې موضوع کښې تخصص او مهارت لري، تهيه کوي او د کتابونو د پلانګذارۍ، تهيې، چاپ او وېش ته د چمتو کېدلو ټول پړاوونه به يې په ګډه پر مخ بيايي. دا ډله د افغانانو له خواخوږي ميرمن نانسي دوپرې، حبيب الله رفيع، سر محقق زلمی هېواد مل، حسين فخری، محمد فهيم رحيميار او محمد رفيع څخه جوړه ده.

موږ د هېواد په کليو، بانډو او ښارونو کښې د ګرځنده کتابتون له ټولو ګرانو لوستونکو څخه هيله کوو چې خپلې اړتياوې، غوښتنې او پوښتنې راولېږي او دهېواد له ټولو پوهانو او عالمانو څخه هيله لرو چې په دې لاره کښې را سره مرستې شي څو په دې برخه کښې له ښه نه ښه کتابونه وړاندې کړای شو!

په درنښت

"د اريك ګرځنده کتابتونونو اداره"

## فهرست




# شوم نیت

د یوه لوی غره په لمن کښې یو کوچنی ځنګل پروت و. دغه کوچنی ځنګل په ډول، ډول و نوبت و. د دغه ښکلي او سمسور ځنګل په منځ کښې راز، راز غرنیو لویو او وړو ژوو، ځارویو او ځناورو ژوند کاوه. د دغو ځارویو او ځناورو په منځ کښې یوه زاړه زمري، یوه خر لیوه او یوې ګیدړې هم په دغه سمسور ځنګل کښې شپې او ورځې تیرولې. د زمري، لیوه او ګیدړې په منځ کښې له اوږدې مودې راهیسې ټینګه او خوږه ملګرتیا وه. لیوه او ګیدړه دواړه زمري ته نژدې او منلي وو او دا ځکه چې ګیدړه به ټوله ورځ په ځنګل کښې پټه، پټه ګرځیدله، کله به یې چې په هوسۍ، غرنۍ وزې او یاد شپنو په رمو سترګې ولګیدلې را منډه به یې کړه زمری او لیوه به یې پرې را خبر کړل، زمری او یا لیوه به ورپسې لاړه یو شی نیم به یې ښکار کړه؛ د غرمې، شپې او سهار لپاره به یې خواړه برابر کړل. زمري هیڅکله د ښکار غوښه یوازې ځانته نه خوړله. هغه به درې وخته د لیوه او ګیدړې سره یوځای د ښکار شوي ځاروي او ژوو غوښه ګډه خوړله. کله به چې د زمري ګیډه مړه شوه یو اوږد اروړمی به یې وکړ د ګیدړې د کار او زیار ستاینه به یې وکړه او د لیوه په مخکښې به یې ګیدړه پر تندي ښکل کړه او مننه به یې ترینه وکړه او خپله خوشالي او رضایت به یې په خوږو خبرو څرګند کړ. لیوه به هم په خپل وار

د ګیدړې هڅې او لټې وستایلې، لیوه به زمري ته مخ واړاوه او و به یې ویل: که رښتیا ووایم دغه ګیدړه ډېره هوښیاره او بیداره ده؛ د ځنګل په بر او کوز سر ښې ترې د ښکار وړ ځاروي او ژوي ځان نشي پټولای. د دې د هوښارتیا او هڅو له امله موږ هیڅکله بې ښکاره نه یو پاتې شوي؛ برسیره پردې ګیدړه له تاسره ډېره مینه لري ته وربانديې ډېر ګران یې هر وخت او په هر ځای کښې ستاستاینه کوي او ستاد عمر اوږدوالي غواړي. د لیوه په دغو غوړو خبرو به زمری ډېر خوښ شو، ګیدړه به یې نوره هم زړه ته را نژدې شوه. ګیدړې به چې خپله ستاینه او د زمري رضایت او خوښي ولیده په زړه کښې به ورسره غرور پیدا شو. له ډېرې خوشالۍ نه به یې خوله جینګه شوه په لوړ غږ به یې وویل: زه د دغه ځنګل د پاچا (زمري) نوکره یمه، زه د زمري هر امر د سر په سترګو منمه، زه له زمري څخه خپل ځان او ژوند ځار وم.

له لیوه سره هم د زمري ډېره جوړه وه، د لیوه ژوند له هر ډول خطر او ګواښ څخه خوندي و او د چا خبره لیوه د زمري مرستیال بلل کیده او د ځنګل ژوي او ځناور ترې ډاریدل.

لیوه څکه پر زمري ګران او منلی و چې زمري د څه مودې راهیسې د زړه په ناروغۍ اخته و، یوه میاشت او یا دوه میاشتې وروسته به یې په زړه حمله راتله؛ له ډېره درده به څو ورځې په خپل غار کښې پروت و او لیوه به د زمري د حال او احوال پوښتنه کوله. کله به چې زمری بیرته جوړ شو نو بخپله به یې په ځنګل کښې ښکار کاوه او لیوه به د ښکار کولو له ستونزو خلاص و.

زمری به چې ناروغ شو ګیدړه به یې سرته ناسته وه ژړل به یې، زمري ته به یې دعا ګانې کولې دارودرمل به یې ورته له ځنګل نه راوړل. ګیدړې به د خپلې لکۍ او غوږونو په ښورو لو د زمري نه مچان او ماشې شړل او میږي به یې ورته نژدې نه راپریښودل. د زمري د ناروغتیا په وخت کښې یې د یوې پرستارې او روغتیاپالې په توګه د زمري خدمت کاوه. له همدې امله د لیوه په پرتله ګیدړه

په زمري ګرانه وه او ډېر نازيې ورکاوه او د ښکار د غوښې غوړه او خوږه برخه به يې ګيدړې ته ورکوله او په ښه نوم به يې يادوله. ليوه په خوله هيڅ نه ويل خو په زړه کښې په دې کار له زمري څخه خوابدی او ګيله من و، ليوه غوښتل کله چې ګيدړه چيرته لاړه شي نو زمري ته به يې شيطانت کوي، زمري ته به دګيدړې عيبونه په ګوتو کوي او زمری به په ګيدړې په غوسه کوي چې ګيدړه پرې مړه کړي.

د منې شپې او ورځې را نژدې شوې په پټيو کښې د بزګرو د جوارو فصلونه را لوی شول. ګيدړې کولای شول چې ځان د جوارو په ټانټو کښې پټ کړي او د کليوالو چرګان ونيسي او ښکار يې کړي. ګيدړه د خپل ذاتي خوی او عادت سره سم د يوې اوه نۍ لپاره له ځنګل څخه د جوارو شنو فصلونو ته لاړه او د کليوالو ډېر چرګان يې په خپلې ځانګړې زيرکتيا سره ونيول او وخوړل. ليوه د ګيدړې له غيابت څخه ناوړه استفاده وکړه زمري ته يې وويل: صيب ګيدړه مخاخ ستا ستاينه کوي، غوړه مالي درته کوي، د عمر اوږدوالی درته غواړي خو پسې شادې ما او نورو ته بد رد وايي تا د ځنګل د ژوو او ځناورو قاتل او تيري کوونکی بولی څو وارې يې تا ته ښيرې کړې، وايي کاشکې زمری له دغې ناروغۍ نه مړ شي چې ځنګل مونږ ته پاتې شي. صيب ګيدړه ډېره هوښياره او مکاره ده د هغې په خبرو باور مه کوه.

زمري د ليوه په دې لمسون او شيطانت د ګيدړې نه ډېر خپه شو او په زړه کښې په ګيدړې ډېر په غوسه و. ګيدړه په زړه کښې ډېره خوشاله او مغروره وه، په زړه کښې به يې تير شول که زمری دغه چرګان وګوري څومره به ورته خوشاله او نوره به هم په زمري باندې ګرانه شي. له دې نه خبره نه وه چې ليوه ورته زمری لمسولی او په غوسه کړی، د ګيدړې وينو ته تږی ناست دی. په سوچونو او خيالونو کښې ګيدړه ځنګل ته راورسيدله. په داسې حال کښې چې ګيدړې چرګان په خولې کښې نيولی وو د زمري په مخکښې په ډېر ادب ودريده، سلام يې واچاوه،

د زمرې نه يې د حال احوال پوښتنه وکړه. زمرې چې ليوه په ګيدړې په غوسه کړی و، ګيدړې ته ځواب ورنه کړ خو تر سترګو لاندې به يې چرګانو ته کتل او په زړه کښې به پټ ډير خوشاله شو. ګيدړه چې ډيره هوښياره او ځيرکه وه پوه شوه چې زمری پرې دليوه لمسون په غوسه کړی او ليوه په خپلو دروغو ترې خپه کړی دغه ټولې توکې د ليوه د لمسون دي. زمرې د ګيدړې نه په غوسې پوښتنه وکړه: دا ځو ورځې چيرته ورکه شوې وې؟ ګيدړې په عاجزۍ ځواب ورکړ: قربان زه کلي ته تللې وم چې کوم طبيب پيدا کړم او ستا د ناروغتياد درملو پوښتنه وکړم او ستاد پرهيز ماتي لپاره درې څلور چرګان پيدا کړم ځکه چې ستا ژوند موږ ته لوی غنيمت او نعمت دی، ځنګل په تا ودان او ښکلی دی. هغه خلك چې پاچا نه لري د هغوی به څه حال وي؟ خدای دې ستاسيوری زموږ له سره نه کموي.

د ګيدړې په دې خبرو د زمرې زړه ډير خوشال شو او د زړه نه يې غوسې او خپګان کډه وکړه، له ډيرې خوشالۍ نه يې زړه باغ، باغ کيده. ژر يې ګيدړه وپوښتله: د کوم طبيب سره دې زماد ناروغۍ په هکله کومه سلا او مشوره وکړه او کنه؟ ګيدړې زمری ته وويل: صيب يو نامتو او پوه طبيب راته وويل: که چيرې زمری د ليوه نه پوستکی و باسي او د يوې ورځې لپاره يې واغوندي او د دځارو يو اوژوود غوښې پرځای د چرګانو غوښه وخوري نو ډير ژر به جوړشي او بيا به په ټول عمر کښې ناروغه نه شي او هم به د پخوا غوندې بيرته ځوان او تکړه شي. زمری او ګيدړه په خبره لګياوو چې ناځاپه اجل نيولی ليوه راغی، د زمرې مخ ته ودريد، زمرې ورته بد، بد وکتل پرې ور توپ يې کړ، پر زمکه يې را ځملاوه او په خپلو تيرو داړو يې له ليوه نه پوستکی وايسته او خپله يې واغوسته، زمرې دوه درې ورځې د چرګانو غوښه وخوړه، د ګيدړې توکه رښتيا شوه زمری روغ شو او په دې توکه د زمرې او ګيدړې اشنايي نوره هم خوږه او پخه شوه او ليوه د خپل شوم نيت په سزا ورسيد.

# بخت او عقل

عقل مه غواړه طالع غواړه رحمانه
عقلمند د طالعمندو نوکران دي

یوه ورځ بخت او عقل یو بل ته په یو ښکلي بڼ کښې مخامخ کښیناستل؛ له خبرو اترو وروسته یې په لاپو او پټاکو پیل وکړ. هر یو په دې لته کښې و چې په خپلو خبرو په ټولنه کښې خپل ارزښت او اهمیت زیات څرګند کړي او په انساني ژوند کښې خپل ځای او مقام لوړ ثابت کړي. بخت عقل ته او عقل بخت ته غاړه نه ایښودله یو له بل نه ځان لوړ ګاڼه، بخت عقل ته وویل: راځه له خبرو او بیځایه لاپو نه تیر شو او په ټولنه کښې خپل ارزښت په عمل کښې ثابت کړو. عقل وخندل او په ډیر غرور یې بخت ته وویل: دایې ګزاودایې میدان. بخت او عقل لاپه خبرو لګیاوو چې یو ځوان له خپل کور څخه راووت. دغه ځوان په ټول کلي کښې په ساده مشهور و. د نورو ځوانانو غوندې پوه او هوښیار نه و او نه یې چالاکي او ټکي زده وه. بخت ځان دغه ځوان ته ور ورساوه، په سر یې ورته سیوری وکړ. بخت د عقل نه خپل ازمیښت لومړی پیل کړ. هلك د کلي په مخکښې ولاړو یو خوا او بله خوا یې کتل ناڅاپه څلور پوځیان راغلل او ځوان یې د عسکری لپاره له ځان سره د نورو راغلیو عسکرو ټولنځي ته بوته. دا چې دغه ځوان ښکلي څیره او جګه ونه درلوده د پاچاد شاهي ګارډ لپاره وټاکل شو. له ځوان سره عقل لکه د هغه سیوری

ځنګ په ځنګ روان و. څو ورځې وروسته ځوان د پاچا په ساتونکیو او باوري عسکرو کښې شامل شو هر چیرته به چې پاچا ته دغه ځوان به د ساتونکي په توګه ور سره ملګرې و. ځوان له یوې ورځې نه بلې ته پر پاچا ګرانیده او د نورو ټولو عسکرو په پرتله دغه ځوان پاچا ته نژدې او پوره اعتمادي او باورې و.

دا چې له یوې خوا د پاچا نور ساتونکي او څارونکي د دغه ځوان په ساده توب خبر وو او له بلې خوا،یې د پاچا دغه ساده ځوان ته په زړه کښې کینه، رخه او غوسه راتله. د پاچا نورو عسکرو ورته یو شوم پلان جوړ کړ، ساده ځوان ته یې وویل: که دې په یوې لویې ټولنې کښې د پاچا له سرنه جوغه ایسته وغورځوله نو په رښتیا به له موږ ټولو ته زړه ور او تکړه ځوان یې او موږ ټول به درته ډیرې پیسې او ښه، ښه انعامونه او سوغاتونه درکړو او هر چیرې به دې دزړه ورتیا خبرې او کیسې کیږي. ځوان د خپلو ملګرو خبره ومنله عقل ورته ؤ دغه ناوړه کار په هکله هیڅ ونه ویل.

یوه ورځ پاچا د هېواد د ولایتونو والیان او د خپلې کابینې وزیران او نور ډیر لوړ رتبه مامورین او رئیسان راغوښتي وواو د هېواد دراتلونکي کال د پلانونو او پروګرامونو په باره کښې یې خرګندونې او سپارښتنې کولې. ساده ځوان چې د یو باوري عسکر په توګه د پاچا شاته تیار ولاړ و د پاچا د سرنه جوغه په زمکه راوغورځوله. پاچا په دې ناوړه عمل خپه شو او د غوندې برخه وال د ساده ځوان دغه ناوړه کار ته هک حیران پاتې شول. پاچا مخکښې له دې چې د دغه ساده عسکر دوژلو امر ورکړي، بخت یوه شو چې عقل له ځوان سره ناځوانې وکړه او ساده ځوان یې د مرګ منګولو ته ورکړ نو ځان یې ژر ور ورساوه، د پاچا په جوغه کښې یې ځان د یو خطرناک او وژونکي مار په ښه ځای پرځای کړ پاچا لاس ښکته کړ چې خپل تاج له زمکې څخه را پورته او پر سر یې کښیږدي ناڅاپه یې په هغه خطرناک او وژونکي مار سترګې ولګیدې پاچا چې دغه پیښه ولیده هک پک پاتې شو څومره یې چې ځوان ته غوسه راغلې وه او د هغه وینو ته تږی و، هماغومره پرې

نور هم مهربان شو او راغلي کسان د ځوان دغه کار حیران کړل.ساده ځوان عسکر لاپسی پاچا ته نژدې او ګران شو.

د ساده ځوان ملګري په خپل شوم پلان کښې پاتې راغلل. عقل هم بخت ته خړ، خړ کتل او خپه ښکاریده چې څنګه بخت ته کم راغی.

څومیاشتې وروسته د ساده ځوان ملګروبل ناوړه پلان جوړ کړ، ساده ځوان ته یې وویل: ته خو پوهیږې چې پاچا د برندې په بام په پالنګ کښې ویده کیږي او ته یې دمانی په انګړ کښې پیره او ګزمه کوې که د هغه پالنګ دې د برندې له بام نه لاندې را وغورځاوه موږ به دې ومنو او ډیر سوغاتونه به درکړو.

ساده ځوان بیا هم د خپلو ملګرو په دغو غوړو او دروغجنو وعدو وغولیده پاچایې له پالنګ سره یو ځای د برندې له سر نه لاندې را وغورځاوه، پاچا غوښتل چې دغه ساده ساتونکی بندي کړي او د مرګ سزا ورکاندې.بخت پوه شو چې بیاهم عقل له ساده ځوان سره کومه مرسته ونه کړه او د مرګ د بلا په خولې کښې یې ورکړ، ژر یې ځان د برندې سرته ورساوه برنده یې لاندې را وغورځوله. پاچا چې دغه خطر ناکه او حیرانوونکی پیښه ولیده دلوی خدای (ج) شکر یې پرځای کړ او ساده ځوان ورته بزرګ او د برخې څښتن ښکاره شو؛ په زړه کښې یې و ګرځیدله که چیرې یې زه له بامه نه وای را غورځولی نو اوس به د برندې د خاورو او درندو لرګیو لاندې له منځه تللی وای دا ځوان عسکر څومره وفادار او هوښیار سړی دی. دا دویمه خطرناکه پیښه ده چې ده زما ژوند له خطر څخه وژغوره. ساده ځوان نور هم پاچا ته ګران او منلی شو او د زوی په سترګه به یې ورته کتل. عقل چې د بخت مهارت او اهمیت ته وکتل سترګې یې ښکته واچولې په خولې یې څه ونه ویل خو په زړه کښې یې د بخت رول او ارزښت ته غاړه کیښوده.

له ساده ځوان سره د پاچا دومره مینه زیاته او دومره یې پرې باور زیات شو، لکه د خپل سیوري غوندې به یې له ځان سره ګرځاوه او هر وخت به یې ورته

انعامونه او لوی، لوی مکافاتو نه ورکول. د ساده ځوان ملګري په خپل شوم پلان کښې بیا هم پاتې راغلل. د دې پړخای چې د دوی دغه شوم پلانونه ساده ځوان ته زیان او تاوان ور سوې ګټه یې ورته ورسوله او د پاچا په زړه کښې یې ورته ځای ورکړ، نو ځکه یې د خپلو شو موپلانو نو له جوړ ولو او پلي کولو څخه لاس واخیست.

د عقل او بخت تر منځ لاهماغسې درقابت او سیالۍ لوبه روانه وه، عقل ډیره هڅه وکړه چې په دغې لوبې کښې بخت ته ماتې ورکړي او ځان ترې مخکښې کړي.

څو میاشتې تیرې شوې پاچا بیا هم خپل وزیران. والیان او نور لوړ رتبه مامورین او رئیسان خپل حضور ته را وغوښتل او په شاهي بڼ کښې یې ورته د خپلو اوړدو خبرو په لړ کښې خپلې غوره او ګټورې غوښتنې او سپارښتنې څرګندولې. ساده ځوان ساتونَکی بیا هم د پاچا شاته ولاړو. په داسې حال کښې چې پاچا خبرې کولې ناڅاپه له یو لوړ چنار څخه د کوم یو غټ مرغه ناولتوب د پاچا د قیمتی او ښایسته کورتۍ د لستوني لپاسه په ښۍ اوږې پر یووت او ډیره کرکجنه او بده منظره یې جوړه کړه او د پاچاښۍ اوږه یې ناولې کړه. د ځوان ساتونکي ورته پام شو د پاچا د اوږې له پاسه دغه ناولتوب او کرکجنې منظرې ځوان ساتونکی حیران کړ. پاچا په خبرو لګیا و هیڅ یې خپلې اوږې او د مرغه ناولتوب ته پام نه شو. دا چې د ساده ځوان ساتونکی پام او سترګې د پاچا د ښۍ اوږې پر ناولتوب لګیدلې وې، د دې لپاره چې نور خلك ورته ځیرنشي او پاچا پورې ونه خاندي د برچې سر یې د پاچا اوږې ته ورنژدې کړ او هغه ناولتوب یې یو څه د پاچا له اوږې نه لیرې کړ. د پاچا چې په برچې سترګې ولګیدلې له ډیرې ویرې یې توپ کړ. راغلی کسان دغې پیښې ته هك حیران شول او د پیښې په څرنګوالي او معما پوه نه شول. پاچا ډیر خپه او په غوسه شو. نورو ساتونکو ته یې امر وکړ چې په دغه حرام نمکه ساتونکي لاسونه او پښې و تړئ او جیل ته یې بوزئ او دوه ورځې وروسته یې

راولئ او زما په مخکښې یې غر غره کړئ. دې حرام نمکه سره ما څومره نیکۍ او ښیګڼې وکړې خو دې حرام نمګه هیرې کړې غوښتل یې چې ماله منځه یو سي او ومې وژني. عقل نه پاچا په اصل حقیقت او د ساتونکي په اخلاص پوه کړ او نه یې ساده ځوان ته د ژغورلو لارې چارې وښودلې.

دوې ورځې وروسته د پاچا له امر سره سم ساده ځوان نورو ساتونکیو د غر غرې لپاره پاچاته راووست ساتونکی ډیر خوشاله وو چې ساده ځوان د پاچا له نظره ولویده، بد یې ځنی راغلل، له خپل دربار نه یې لیرې کړ او نن یې غر غره کوي. مخکښې له دې چې پاچا خپل امر عملي کړي بخت پوه شو چې د ساده ځوان ژوند په خطر کښې دی او عقل دلته هم ورسره ناځواني وکړه او د هغه ژوند یې په لوی لاس له خطر او تکر سره مخامخ کړ. ژربې ځان پاچا ته راورساوه؛ د پاچا سره یې فکر پیدا کړ چې د دغه ساده ساتونکي نه پوښتنه وکړم چې له دومره نیکیو او ښیګڼو سره، سره یې ولې دده وژلو ته اقدام وکړ؟ پاچا خپل دغه مجرم ساتونکی راوغوښت او همدغه ډول پوښتنې یې ترینه وکړې. بخت له پاچانه ساده ساتونکي ته راغی ساتونکي ته یې د خبر وکولو چل او لارې چارې وښودلې پاچا ته یې وویل: صیب کله چې تاسو راغلیو کسانو ته ګټورې او ارزښتناکې خبرې کولې د چنار نه د کوم ناولی مرغه ناولتوب ستا په ښی اوږې پریووت، د دې له پاره چې د چاور ته پام نه شي اوونه خاندي ما غوښتل چې د برچې په څوکه ستاسو له ښکلې او شاهانه اوږې څخه د بد مرغه، مرغه دغه ناولتوب لیرې کړم. له ما سره ستاسو په هکله بد او شوم نیت نشته زه حرام نمك نه یم چې ستاسو پیرزو، پاملرنه او نیکي هیره کړم. ساده ځوان زیاته کړه که تاسو خپله هغه شاهانه کورتۍ چې تا سو اغوستې وه را وغواړئ ښایي د هغې ورځې د ناولتوب نخښې په خپلو مبارکو سترګو وګورئ او زما ښه نیت او مینه تاسو ته څرګنده شي.

پاچا خپل یو ساتونکی ولیږه چې له کور څخه یې هماغه کورتۍ راوړي. ساتونکي کورتۍ راوړه د پاچا په مخکښې یې کیښودله، پاچا د کورتۍ ښی لستونی

په ځير، ځير له سترګو تير کړ په يو زړه بدوونکي او کرکجن ناولتوب يې سترګې ولګيدلې د ساده ساتونکی خبرې ربنتيا وختې، پاچا ته د خپل ساتونکي د نيت او عمل سپيڅلتيا څرګنده شوه هغه ورته بې ګناه ښکاره شو ځانته يې را نژدې کړ، په مخ او تندي يې ښکل کړ بخښنه يې ترې وغوښته او د پخوا په پرتله يې ورسره مينه، پيرزوينه، لورينه او پاملرنه لاپسې زياته شوه. د بخت او عقل لوبه پای ته ورسيده، عقل مجبور شو چې د بخت اهميت ته غاړه کښيږدي او د انسانانو په ژوند کښې يې لوړ مقام ومني.

# یتیم وری

د پسرلي شپې او ورځې وې. زمکې شنې جامې اغوستې وې؛ غرونو، دښتو او چمنونو ته ګلانو کډې راوړې وې. په دښتو او رغونو کښې راز، راز بوټو سرونه را اوچت کړي وو. د ورېمو نه ډکه او خوږه هوا چلیدله. شپنو به خپلې رمې په دښتو او رغو نو کښې څرولې. میږو اووزو په لنګون پیل کړی و.

یوه ورځ یوه شپون خپله رمه په هغې سمسورې دښتې کښې پیوله چې په ډول ډول وښو، بوټو او سرو، سپینو او ژیړو غاټولو او بیدیاني ګلانو ښکلې شوې وه. رمه په دښته کښې څریدله؛ میږو په خوند، خوند واښه خوړل او شپون ورته د یو لوی کټ لپاسه ناست و او خپله شپیلۍ یې غږوله. یوه میږه چې د غاټولو په منځ کښې څریدله یو ناڅاپه پرې د لنګون کلك او دروند درد راغی، څو شیبې وروسته میږې یو ښکلی نر وری وزیږاوه خوله بده مرغه خدایزده په میږې څه ټکه پریوتله له څو زګېرویو وروسته مړه شوه او ګلالی وړوکی وری ترې یتیم پاتې شو. وری وړی په خړو خاورو کښې د مړې مور په څوا کښې پروت و. په دغې درد ناکې او ناڅاپې پیښې شپون هیڅ پوه نه شو، رمه ورو، ورو له دغه ځای نه د یوې غونډۍ لمنې ته لاړه.

یو ساعت وروسته د مړې میږې او یتیم وړوکي وري پسې خر لیوه ځان راورساوه. د لیوه چې په میږې او ګلالي وري باندې سترګې ولګیدلې زړه یې له

ډيرې خوشالۍ نه باغ، باغ شو. ليوه خپل بخت ته حيران پاتې شو چې څنګه يې په غوږ او خونده ور ښکار ور برابر کړ. ليوه له ځان سره چورت واهه چې لومړی د ميږې په خوړلو پيل وکړي او که د يتيم وري په وينو او غوښې خپله وږې ګېډه ډکه کاندي؟

ليوه د چورتونو په سين کښې ډوب و، سترګې يې ميږې او وري ته نيولې وې نو ريې هيڅ شي ته پام نه و. په تصادفي ډول يو ځوان ښکاري چې ټوپك يې غاړې ته اچولی و د پيښې ځای ته را ورسيد. ليوه د سرې په راتلك پوه نه شو. د ښکاري لومړی سترګې په خر ليوه او بيا په ميږې ولګيدلې، د قسمت کارونه وو د ليوه په غوږ او خونده ور ښکار کښې نصيب نه و. ځوان ښکاري چې دغې دښتې ته د هوسيو په ښکار پسې راغلی و ژرټوپك په لاسو کښې ونيو په ماشه يې ګوتې کښېښودې په ليوه يې ډز وکړ، ليوه په ملا ولګيده په داسې حال کښې چې سرې وينې ترې څخيدلې په ځغاسته ولاړ او د ښکاري له بل ډز نه يې ځان بچ کړ.

ليوه ليرې د يوې غونډۍ د پاسه سترې او ټپي ولاړ ښکاري، ميږې او يتيم وري ته يې رډ، رډ را کتل. د ليوه خپل ځانته ډيره غوسه راتله چې ولې يې په خوشې چور تونو او څنډوړيا او جانانه ښکار له لاسه ورکړ. ښکاري چې له يوې خوايې مړې ميږې ته کتل او له بلې خوا وړوکي يتيم وري ته چې د خپلې مړې مور په څنګ کښې په خاورو ککړ پروت دی او له ډيرې لوږې نه دردوونکې رمباړې وهي او د تندې له لاسه يې ژبه په خولې کښې وچه شوې او څو شيبې وروسته يې ښايي خپل ژوند له لاسه ورکړی وای په چورت کښې لاړ. يو څو شيبې په دغې غمجنې پيښې خپه او خواشينی شو او د دواړو په حال يې زړه وسوځيده، خودا چې وړوکی يتيم وری يې د خر ليوه نه ژغور لی و په خپل دغه عمل يې وياړکاوه په زړه کښې به يې تيره شوه که نن مې ښکار ونه کړ نو دوړو کی يتيم وري ژوند خو مې د خر او ظالم ليوه نه وژغوره څومره نيك، ګټور او د خير نه ډك کار مې سر ته ورساوه. ځوان ښکاري يتيم وری له خاورو څخه را پورته کړ، پاك يې کړ، په

ځادر کښې يې تاو او په غيږ کښې يې ونيو او د خپل کور خواته را روان شو او په دې توګه يتيم ګلالی ورى او مور يې يو د بل نه د تل لپاره بېل شول. ښکاري چې خپل کور ته راغی د پښې ټوله کيسه يې خپلې ميرمنې ته وکړه، د ښکاري ميرمنې يتيم ورى په اوبو پرېمنځه. وايي :ښکاري په کور کښې لنګه ميږه درلوده. ښکاري خپلې ميرمنې ته سپارښتنه وکړه چې د دغې يتيم وري په ساتنه او ژغور نه کښې زياته پاملرنه وکړي ځکه دغه ډول کار ډېر اجر او ثواب لري. د ښکاري ميرمنی يتيم ورى د لنګې ميږې تي ته واچاوه. وري د ميږې تی ورودل او ښه يې ځان موړ کړ. د ښکاري ميرمن تر هغې پورې دې کار ته دوام ورکړ چې ميږه وچه او ورى لوى شو او نوريې شيدو ته اړتيا نه درلوده او په وښويې ځان مړولای شو. د ښکاري په کور کښې دغه يتيم ورى ډېر ژر رالوى شو، موريې هيره شوه نور ورته ځان يتيم نه ښکاريده. يتيم ورى به د ميږې له بل وري سره يو ځاى ګرځيده او له ډېرې خوشالۍ او مستۍ نه به يې ټوپونه وهل، يو ځاى به يې لوبې کولې او يو ځاى به څريدل. يتيم ورى په زړه کښې د ښکاري او د هغه د ميرمنې د پاملرنې او پالنې نه ډېر خوشاله و او په زړه کښې به يې تير شول چې ښکاري او ميرمن يې څومره مهربان او زړه سواندي دي. دواړو زما په ساتنه او پالنه کښې څومره پاملرنه وکړه. د وري د دغې ړندې مينې او دروغجنې پېرزوينې نا وړه پاى ته هيڅ پام نه و او له دينه خبر نه و کله چې يو کال وروسته ترې غټ او چاغ پسه جوړ شي،نو له څه ډول برخليك سره به مخامخ کيږي. رښتيا د يتيم وري نه يو کال وروسته غټ او چاغ پسه جوړ شو، ښکاري او ميرمنې به يې چې د يتيم وري غټوالي او چاغوالي ته کتل دواړه به ورته خوشاله شول او په خپلو کښې به يې وويل: کله چې د لاندي کولو وخت شو او کليو الو خپل پسونه حلالول او لاندی کول. موږ به هم دغه غټ او چاغ پسه له نورو کليوالو سره يو ځاى حلال او لاندی کړو او د ژمي شپې او ورځې به يې په غوښه او وازده ښې په خوند تيرې کړو. د لاندې وخت را نژدې شو کليوالو په لاندي پيل وکړ. ښکاري هم يتيم وري ته چې اوس ترې غټ

پسه جوړ شوی و، چاړه تیره کړه پښې یې ورته وتړلې او پر زمکه یې را څملاوه او چاړه یې ورته پرمرۍ کښېښودله یتیم ورې د ښکاري نه هیله وکړه چې د څوشیبو چورت وهلو او خبرو وخت ورکړي. یتیم ورۍ پر زمکه له ډیرې ویرې ریږدیده او لړزیده په سترګو کښې یې رڼې، رڼې او ښکې ګرځیدلې او ښکاري ته یې داسې حیران، حیران کتل لکه د یتیمۍ په لومړیو ترخوشیبو کښې یې چې لیوه ته کتل. د یتیم وري له سترګو اوښکې توی شوې، ژر یې د یتیمۍ ترخې شیبې او دغه دردونکی وخت یو له بل سره پر تله کړل. خپله مړه مور او خړ لیوه یې سترګو ته ودریدل. د ښکاري او د هغه د میرمنې د پیرزوینې او پاملرنې ناوړه پای ته هك پك پاتې شو. لومړی یې له خولې نه یو سوړ او سیلی وایسته او بیا یې ښکاري ته مخ ور واړاوه او ورته یې وویل: زما د ژوند په برخه کښې ستا او د هغه خړلیوه څه توپیردی؟ هغه په ماشومتوب کښې خوړلم تا ترې وژغورلم اوس چې غټ شوم تا مې په مرۍ چاړه اېښې او ژوند رانه اخلې همدومره درته وایم چې اوس ماته ستا او د خړلیوه هیڅ توپیر نشته.

# درې غله

يو وخت په يوه لويه او پراخه سيمه کښې چې ډير کلي او ګڼ اوسيدونکي يې در لودل يو ناڅاپه درې تنه خطرناك داړه ماران غله پيدا شول. دغو غلو د دغې شتمنې سيمې د اوسيدونکو ژوند او شتمنۍ له ويرې، ګواښ او خطر سره مخامخ کړل. خلکو به ويل، د دې سيمې کورنيو ته خپله شتمني اورشوه، که د دې سيمې اوسيدونکيو دومره ډيرې زمکې او په کورونو کښې سره او سپين نه درلوداى نو له دغو خطرناکو غلو سره به نه مخامخ کيدل کله، کله سړي ته خپله شتمني هم غم شي.

دغو درې غلو د يوه لوى غره په يو پټ ځاى کښې په يوې اوږدې سمڅې کښې خپلو ځانونو او غلا کړو څيزونو ته ځاى جوړ کړى و. غلو به دورځې د يو بډاى سړي کور په نخښه کړ او نيمه شپه به له وسلو سره راغلل د کور ټول سره او سپين زراو نور قيمتي او ارزښتناك شيان او سامانونه به يې غلا کړل او له ځان سره به يې غره ته يووړل. دا درې واړه وسله وال غله وو ډيرې وژونکې او ډاروونکې وسلې ور سره وې نو ځکه د غلا په وخت کښې د کور خاوندانو ورته هيڅ نه شول ويلاى. دغو غلو به چې کومه شپه د چاکور وواهه سهار به چې د کور غړي له خوبه راويښ شول نو په خپلو کښې به يې يو بل ته ويل: مال دې په بلاپسې شي ښه دى چې زموږ سر او ژوند ترې خوندي او په امان پاتې شو. په لږه

موده کښې دغو درې غلو د دغې سيمې دښمنو خلکو کورونه ووهل او ډير قيمتي شيان يې ترينه يو وړل. غلو په ډاډه زړه کورونه وهل او لوټول او دسيمې خلك د مخنيوی لپاره د هيڅ ډول تدبير په فکر کښې نه وو. داسې آوازې هم خپرې شوې چې د دغې سيمې حاکم له غلو سره لاس لري، د حاکم او غلو لار او خبره يوه ده، د غلو د غلا مخه نه نيسي او نه يې په نيولو پسې هڅه کوي ځان يې چوپ او نا خبره نيولی دی؛ چا به ويل حاکم ډير ډارن سړی دی، دې هم له غلو نه ډاريږي، يوازې د ځان او ژوند غم ورسره دی خو ټولنه او د سيمې د خلکو ژوند او پت يې له ياده ايستلي دي. خدايزده د دغې سمسورې او ښتمنې سيمې خلك د چا بدو سترګو او وږې نظر وهلي يا ورته کوم بيوزلي او غريب ښيرې کړې چې د غسې بده ورځ پرې راغلې او د درې تنو غلو دنيولو او مخينوي وس نه لري او له دغه شر او خطر څخه ځانونه نشي ژغورلای. يوه بله بدبختي هم د دغې سيمې د خلکو په منځ کښې موجوده وه. سره له دې چې دوی ښتمن او زيات وو، خو په خپل منځ کښې يې يو والی، خوا خوږي او همکاري نه در لوده. هره کورنی د ځان ځانی او ځان پالنې په رنځ اخته وه، کومه شپه به چې د يو ښتمن کور ووهل شو د کلي چم بل ګاونډی به پرې نه خبه کيده او نه يې ورسره خپله خوا خوږي ښودله. له بلې خوا د دغې سيمې حاکم په رښتيا چې يو بې احساسه، ډارن او لټ سړی و، يوازې په نوم حاکم و. د خلکو سره شك پيدا شو چې د خلکو ګونګسی رښتيادی حاکم له غلو سره شريك دی او د غلو نه خپله برخه اخلي نو ځکه د غلو په مخنيوي کښې يو ګام هم نه اوچتوي. حاکم دومره هم ونه کړل چې ځانته دا پته و لګوي چې دغه غله له کوم ځای نه راځي او دا دومره مالونه او سامانونه چيرته وړي؟

يو کال وروسته د غلو غلا کړي قيمتي شيان دومره زيات شول چې نور په سمڅو او غارونو کښې نه ځاييدل. دغو درې غلو غوښتل کله چې د سيمې دښمنو کورونه و وهي بيانو دسرکاري خزانې وار دی.

---

دغه درې غله يو له بل نه زيات حريص او په شتو او پيسو مين وو. يو بل ته په زړه کښې تلښ وو، هر يو يې په دې چورت او فکر کښې و چې په څه ډول او چل دغه ټول سامانونه او سره او سپين زر يوازې د خپل ځان کړي. هر يو هڅه کوله چې په يو ځانګړې مهارت سره دانور له منځه يوسي او دغه زياته او بيشميره شتمني ورته پاتې شي. يوه ورځ دوه کسانو خپل دريمګړې ملګري ته وويل: لاړ شه نن د ښار نه تازه ميوه، ډوډۍ راوړه او يو چاغ پسه راوله. پام کوه چې څوك در باندې پوه نشي ودې نه نيسي. دغه دريمګړی غل د خپلو ملګرو له غوښتنې سره سم د ښار په لور وخوځيده دغه غل لانبار ته نه و رسيدلی چې نورو دوه ملګرويې د وژلو پلان جوړ کړ دواړو پريکړه وکړه کله يې چې ملګری له ښار څخه بيرته راستون شي دواړه به يې په ګډه وژني او د هغه برخه مالونه او سامانونه به په راتلونکي وخت کښې په خپل منځ کښې ويشي. دوی دواړو د خپل شوم پلان د سر ته رسولو لپاره د خپل ملګري دراتلښ لارې څارلې. د دوی دريمګړي ملګري په ښار کښې وژونکي زهر پيدا کړل ډوډۍ پخوونکي ته يې ورکړل چې په اوړو کښې يې ګډ کړي او د ټولو اوړو نه ده ته ډوډۍ پخه کاندې کله چې يې ملګري وخوري نو دواړه پرې مړه شي. د ده پلان داو چې پخپله به دغه ډوډۍ نه خوري که ملګر ويې ورته وويل چې ته ولې ډوډۍ نه خورې؟ ورته به وايي چې ما په ښار کښې دومره ځيزونه خوړلي چې اوس مې پرې ګيډه خوړيږي او هيڅ اشتها نه لرم. کله مې چې د ګيډې درد ښه شو او اشتها مې راغله بيا به يې زه هم وخورم. دريمګړي غله شيان شاته راواچول او د غره په لور را روان شو. ژر، ژر به يې پر لاره په زړه کښې تيريدله که د هغو نورو په وژنه بريالی شي څومره زياته او پريمانه شتمني به ورته پاتې شي ټول عمر به پرې ميلې او چړچې کوي بيا غلا کولو ته نه اړ کيږي. په همدې چورتونو کښې خپل استوګنځي ته رانږدې شو د نورو ملګرو يې پرې سترګې ولګيدلې دواړه مخې ته ورغلل. دښار ته تللي ملګري په زړه کښې يې تير شول چې دغه دوه ملګري يې د ده د هر کلي او مرستې لپاره راغلل. له پلان

سره سم دواړو ملګرو یې پرې ټوپ کړ پر زمکه یې راوغورځاوه په خولې او مرۍ یې ورته لاسونه کښېښودل هر څومره زور یې چې وکړ له خپلو ملګرو څخه یې ځان و نه ژغورلی شو څوشیبې وروسته یې سا وختله او دښمنۍ او شتمن کیدلو ارمان یې پوره نه شو، ملګرو یې د غره یوې لیرې لمنې ته یو وړ او په سر سرې توګه یې په خاورو کښې پټ کړ؛ د شپې ورپسې لیوان او نور ځناور راغلل خاورې یې ترې لیرې او خپلې ګېډې یې پرې ډکې کړې. ملګرویې خوراکي مواد خپل استوګنځې ته راوړل یو سات وروسته یې د خوښۍ په څپو کښې په ډوډۍ خوړلو پیل وکړ خپلې ګېډې یې په زهر جنې ډوډۍ او میوو مړې کړې او غوښتل یې چې پسه به سباته کبابوي. کله چې د ماښام تورې تیارې راخورې شوې د دواړو غلو په ګېډو کښې زهرو سوز او درد پیدا کړ. ګېډې یې وپړسیدلې دواړو سرونه پر زمکه کښېښودل له څو بدو، بدو چیغو او ټوپونو وروسته د دواړو سا وختله. شتمنه سیمه او د سیمې اوسیدونکي د دغو درې غلو له شر او خطر څخه د تل لپاره وژغورل شول. د دغو غلو مړي هم د ځناورو خوراك شول. یوه ورځ وروسته د سیمې خلك په دغې پیښې خبر شول راغلل او له سمڅونه یې خپل سامانونه، مالونه، سره او سپین زر خپلو کورونو ته یووړل.

# د نیکمرغۍ مرغه

یو وخت په بر کلي کښې یو شتمن بزګر او سیده، د دغه بزګر ژوند د نورو کلیوالو په پرتله له هره پلوه هوسا او بسیاو. ډیری زمکې او دوه درې ژرندې یې درلودې، هر وخت به یې په کور کښې څو لنګې غواګانې، میښې او میږې وې. د ده په کور کښې د هر ډول شتو او نعمتو پریماني وه. څه موده وروسته دغه شتمن او بډای بزګر ډیر کلك ناروغ شو. بزګر دوه ځوان زامن درلودل چې دواړو ته یې ودونه کړي وو. د دواړو زامنو په ودونو کښې یې ډیرې پیسې لګولې وې.

دواړو زامنو یې د خپل پلار درو ته ملا وتړله چیرته به چې نامتو او پوه طبیب او یوناني حکیم و دوی به ورته خپل پلار ورواسته، هر یو طبیب او حکیم به چې ورته هر ډول درمل وښوول هغوی به ورته اخیستل خو له بده مرغه یو طبیب او حکیم هم درنځور بزګر په رنځ پوه نه شو او نه یې پدې درملو کومه اغیزه وکړه.

د بزګر ناروغي له یوې ورځې نه بلې ته اوږدیده او سختیدله، زامنو یې خپل رنځور پلار د علاج او درملو په خاطر ډیرو لیری ځایونو ته هم بوته خو په دغروځایو کښې هم طبیبان د هغه د رنځ له پیژندلو نه عاجز پاتې شول او د یو طبیب او ډاکتر درمل ورباندې ښه ونه لګیدل او نه یې د رنځور درد او رنځ په ښه کولو کښې کومه مرسته وکړای شوه. رنځور بزګر او زامن یې ډیر خواشیني وو او د خپلو ناکامو منډو رامنډو له امله ستړي او نا امیده ښکاریدل. د بزګر میرمنې به د

کور له نورو غرو او ماشومانو سره شپه او ورځ ژړل او د ټولو له سترګو به لیږي. لیږي اوښکې تویېدلې. د رنځور بزګر او سیلیو اوزګېرویو د هغه د کورنۍ هر یو غړی ځوراوه، دا چې دواړو زامنو یې د خپل رنځور پلار ډېر خدمت کړی واو شپه او ورځ ورته لاس په نامه ولاړ وو نو رنځور پلار یې ورته هر وخت ښکاره او په زړه کښې دعا ګانې کولې او د لوی خدای نه یې ورته نیکمرغي غوښتله.

د بزګر ناروغي نژدې پنځلس (۱۵)کاله اوږده شوه. د بزګر زامنو ټوله شتمني او ځمکه د خپل رنځور پلار په درملو ولګوله او د هوښیارانو دا خبره چې روغ ډوډۍ او ناروغ پیسې خوري عملي شوه. څومره چې د رنځور بزګر کورنۍ ځو کاله پخوا د خپل کلي یوه بډای او شتمنه کورنۍ وه او تر بل هر چایې هوسا، خوشاله او نیکمرغه ژوند درلود، اوس همدومره غریبه او بیوزله کورنۍ ترې جوړه شوې وه، اوس په ټول کلي کښې له دوی نه زیاته بله کورنۍ دستونزو سره مخامخ نه وه. هغه وخت چې د دوی لستونې غوړ او د شتو خاوندان وو ډېر دوستان او خپلوان یې درلودل او هر چا به یې پوښتنه کوله خو چې غریبې او بده ورځ وربانډې راغله خپلوانو او دوستانو ترینه لاس واخیست او بیایې د دوی نوم هم په خولې نه اخیست.

له کړیدلو او ځوریدلو وروسته بزګر سترګې پټې کړې او په ابدي خوب ویده شو. زامنو یې په ډېر عزت او درنښت خاورو ته وسپاره. ډېر لوی، لوی خیراتونه او د قرآن پاك ختمونه یې ور پسې وکړل نو ځکه ډېر پوروړي شول. څومره چې په ناز او خوشالۍ دوی ژوند کړی و هماغومره پرې ترخې شپې او ورځې راغلې خو له دغو ټولو ستونزو او کړاوونو سره، سره یې د خپل پلار او کورنۍ نوم نیك وساته او خپل همت یې له لاسه ورنه کړ. دا چې په کلي کښې د یوې ورځې نه بلې ته د دوی ژوند له ډول، ډول ستونزو سره مخامخ کیده. کله یې چې مور هم له دې نیمګړې نړۍ نه کډه وکړه د دواړو ورونو ستونزې او کړاوونه نور هم مخ پر زیاتیدو شول. ځو ورځې وروسته د واړه ورونه سره بیل شول، عجیبه داوه چې د مشر ورور





هم یو زوی او یوه لور وه او کشر ورور یې هم د یوې لور او یو زوی پلار و. یوه ورځ مشر ورور کشر ورور ته وویل: وروره زه نور په کلي کښې ژوند نشم کولای ورځ په ورځ له راز، راز کړاوونو سره مخامخ کیږم ما اوریدلي چې په چا مشکلات زور شي یادې په سوداګرۍ لاس پورې کړي او یادې بل ځای ته کډه وکړي خدای (ج) یې له تنګسې او ستونزو نه ژغوري، زه سبا ته له خپل کلي نه بلې خوا ته کډه کوم که هلته زما لاړې تیرې شوې تاپسې به هم یا پخپله راشم او یا به د چا په لاس درته احوال راولیږم. دواړه په دې خبره سلا شوه او دواړو دغه پریکړه ومنله. سبا مشر ورور له خپلې میرمنې، زوی او لور سره د کلي نه بلې خوا ته وخوځیدل له درې څلور ګړیو مزل وروسته په یوې دښتې کښې داوبو یوې چینې ته چې په غاړه یې یو لوی لوړ چنار ولاړ و ورسیدل دا چې دوی ټول ډیر ستړي شوي او ګرمۍ وهلي وو نو د چینې په غاړه د چینار سیوري ته کښیناستل، یوه شیبه وروسته د سړي د چنار د یو منډه لپاسه په یوه ښکلې مرغه سترګې ولګیدلې، له سړي سره لینده هم وه. سړي خپلې میرمنې ته وویل: هله ژر شه نغری جوړ کړه. زوی ته یې غږ کړ، منډه کړه لرګي را ټول کړه، لورته یې نارې کړې ژرشه لورې له چینې نه اوبه را واخله یو وړوکی غوندی دیګ پر یمینځه. درې واړو خپل، خپل کار سرته ورساوه ښځې یې ترې پوښتنه وکړه دا کارونه دې د څه لپاره په موږ وکړه؟ میړه یې ورته وویل: پاس د چنار په یو منډه داسې ښکلې مرغه ناست دی چې ماپه ټول عمر کښې بیانه ولیدلې، غواړم هغه په لیندې وولم او پوخ یې کړو او دلته یې د چینې په غاړه د چنار تر سیوري لاندې په خوند، خوند وخورو او په مړه ګیډه خپل مزل ته دوام ورکړو. ښځه یې خوشاله شوه. ښکلي مرغه لاندې د دوی حال ته په ځیر، ځیر کتل او د هغوی خبرو ته یې غوږ نیولی و. کله چې سړي لینده په لاس کښې ونیوله ښکلي مرغه ورته له چنار نه را غږ کړ، لینده دې بیرته په زمکه کښیږده ماچې ستاسو تر منځ یو والی ولیده زه پوه شوم چې تاسو یوه نیکمرغه کورنۍ یاست زه له دغې کورنۍ سره مینه لرم د کورنۍ د غړو تر منځ یو والی او مینه د بریالیتوب

ستر راز دی ما په لیندې مه وله زه به درته د سرو زرو خزانه وښیم.

سړي د ښکلي مرغه خبرو او وعدې ډیر خوشاله کړ. مرغه ورته وویل: د چنار ښی خواو سپږه خاورې رالیرې کړه هلته د سرو زرو خزانه ده سړي همدغسې وکړه او د سرو زرو نه یو ډك دیلګ ورته په لاس ورغی. مرغه له چنار نه والووت او دغه کورنی بیرته په همدغه ورځ خپل کلي او کور ته راغلل. څو ورځې وروسته یې د پخوا غوندې د برم او عزت نه ډك د خوند ژوند پیل کړ. وروریې راغی دوروور نه یې پوښتنه وکړه: وروره څنګه بیرته له نیمې لارې نه راستون شوې او درې ورځې لا نه دي وتلې د شتو او دولت آوازې او انګازې دې ټول کلی نیولی، دا څه کیسه ده؟ مشر ورور یې کشر ورور ته دغه کیسه ټکي په ټکي تیره کړه کشر ورور یې دغه کار ته هك پك پاتې شو. کورته لاړله خپلې ښځې سره یې خبرې وکړې چې سهار وختي به د خپل مشر ورور غوندې دوی هم له خپلی کلي نه کډه کوي. سړي دغه خبره په ډیرې خوارۍ په میرمنې ومنله سهار له وخته وخوځیدل څو ګړۍ وروسته هماغې چینې ته ورسیدل چې په غاړه یې لوړ چینار ولاړو. دوی د چینې په غاړه چینار ته وکتل چې ګوري یو ښایسته او ښکلی مرغه د چینار پرڅانګې ناست دی ګورې- خوږې نغمې او د ژوند ترانې وایي. ده هم د خپل مشر ورور غوندې خپلې میرمنې ته وویل: هله ژرشه نغری جوړ کړه، لورته یې مخ وروارٍاوه سپارښتنه یې ورته وکړه چې دیګی د چینې له اوبو ډك کړي زوی ته یې امر وکړ چې د چینار وچې څانګې راماتې کړي درې واړو سړي ته وویل:دا کارونه پر موږ د څه لپاره کوې؟ سړي ورته په ځواب کښې وویل: پاس د چینار په یوې څانګې ښکلی مرغه ناست دی غواړم هغه په لینده وولم او دلته یې پوخ کړو او څلور واړه یې په مزه، مزه وخورو. د سړي میرمنې، لور او زوی یې په دغې خبرې وخندل؛ میرمنې په خندا خندا کښې وویل: دا ته څومره ساده سړی یې لاتراوسه دې مرغه نه دی ویشتلی او په موږ یی د پخولو کارونه ویشې په تا هم هماغه ټوکه شوې "غوایه حلال نه ښانك پرسر نیولی" مرغه له چینار نه د دغې کورنی د غږو تر منځ دغه خبرې ټولې

واوریدلې نغمې او ترانې یې بس کړې د دغې کورنۍ ګډ وړ حالت ته هك پك پاتې شو. مرغه پاس له چینار نه سرې ته غږ وکړ او ورته یې وویل: زه د نیکمرغۍ مرغه یم زما دغه لنډې څو خبرې په غور واوره زه هغه چا او هغې کورنۍ ته د سرو زرو خزانې وربښیم چې د کورنۍ د غړو ترمنځ یې یو والی، خواخوږي او منښت موجود وي او یو له بل سره مینه ولري یو غړی د بل غړي خوښي او نیکمرغي وغواړي. که ستاسو د کورنۍ همداسې ګډوډ حال وي نو همداسې به ستومانه وړې ترې ګرځئ په هر ځای او هر وخت کښې به ستاسو پر سر د بدمرغۍ او لا لهاندی سیوری وي په یاد ولرئ چې په کورنۍ کښې یو والی او مینه د نیکمرغۍ او خوښۍ راز دی. د نیکمرغۍ ښکلي مرغه خبرې وکړې او له چینار نه بل پلو والووت.

# سپینه کوتره

یوه ورځ چې د پسرلي د ښکلی موسم شپې او ورځې وې او هرې خواته تازه هوا او خوږې وږمې او نغمې چلیدلې، د لوی کلي نه لږ وړاندې په لوی خوړ کښې د مني اوبه په ځپو، ځپو او خوند، خوند په شور او زوږ بهیدلې. د خوړ په دواړو خواوو کښې لوی، لوی او د رانده ګټو نه او غټې، غټې تیږې ځای پر ځای شوې وې چې د خوړ طبیعي ښکلا او ښایست یې نور هم زیات کړی و. د دغو ګټو او تیږو له پاسه تورې، برګې، شنې، نصواري او سپینی کوترې خورې ورې ناستې وې د خوړ د اوبو له ځوږ او شور سره یو ځای یې غومبرکاوه او په خوږو او زړه وړونکو سندرو د خوړ د ځپانده او دهرښو اوبو د نندارې او د خپل آزاد ژوند ستاینه یې کوله او د پسرلی ښکلی او رنګین طبیعت یې لمانځه. د دغو کوترو په سیل کښې یوه ښکلې سپینه کوتره یو څه ناڅه ناروغه وه د خوړ د یو خړګټ د پاسه ناسته وه او سر یې په وزرونو کښې ایښې و. د دغې ښکلې ناروغې کوترې له خولې نه د غومبر او سندرو پر ځای نري نري زګیر وي پورته کیدل. په داسې حال کښې چې د لوړ مازیګر وړانګو خپل وزرو نه د ځپانده اورښو اوبو لپاسه غوړولي وو له ورایه یوه خړه ګیدړه ښکاره شوه. ګیدړې غوښتل چې په ډیر مکرورو، وروځان کوترو ته را نژدې کړي په یوې اویاد و وباندې توپ کړي ویې نیسي او خپلو بچیو ته یې خپل غار ته له ځان سره یو سي. د کوترو چې پر خړې ګیدړې سترګې ولګیدلې نو ټولې

د حیله ګرې ګیدړې په شوم او بدنیت پوه شوې ژر د خوږ نه والوتې او په هوا کښې یې امیلونه جوړ کړل او لاندې یې حیله ګرې او وړې ګیدړې ته په کرکه راوکتل.

له بده مرغه سپینه ښکلې ناروغه کوتره چې د ناروغۍ دردونو کلکه په غیږ کښې نیولې وه ګیدړې ته یې هیڅ پام نه شو. هیله ګره ګیدړه ورو، ورو او په ډیر مکر سپینې ناروغې ښکلې کوترې ته را نژدې شوه ټوپ یې کړ او هغه یې په خپلې ناولې خولې کښې ونیوله حیله ګره ګیدړه په زړه کښې ډیره خوشاله وه له خوښۍ نه یې په زړه کښې ګوړې ماتولې او ویل به یې: دا نن څنګه نیکمرغه مازیګر دی نصیب په څه بختور ښکار واړولم. له ځان سره به یې په زړه کښې تیر شول د کوترې غوښه ډیره خوږه او مزه ناکه وي څه ژوندۍ به یې خپلو بچیانو ته یوسم هر یو ته به یې لږه، لږه ورکړم. په ربښتیا چې زه ډیره نیکمرغه یم چې په داسې خړاو سپیره خوږ کښې په خونده ور اومزه ناك ښکار راپیښه شومه؛ زیاته به یې کړه: دا نن شپه به په موږ په خپل غار کښې څومره هوسا او خوشاله تیره شي. که دا کوتره په لاس نه وای راغلې نو مجبور وو چې شپه مو په لوږه سبا کړې وای. حیله ګرې ګیدړې له ځان سره په زړه کښې دغه ډول د خوښۍ او غرور نه ډکې خبرې کولې. د کوترې نیم ځان د ګیدړې په خولې کښې و. دا چې د کوترې اجل نه و راغلی او څو ورځې نورې یې په نړۍ کښې او به او خواږه پاتې وو ژر یې په زړه کښې تیر شول راشه دغې خرې او وړې ګیدړې ته دوکه ورکړه اوویې غولوه او خپل ځان یې له شر نه وژغوره نو ګیدړې ته یې په خوږه لهجه وویل: که ربښتیا در ته ووایم په ټولو لویو او وړو ځناورو کښې ګیدړه پر ماګرانه ده. د ګیدړې هوښیاري او ښکلا مې خوښیږي، زه له څو ورځو راهیسې ناروغه یمه تا په خپلو سترګو ولیدل کله چې د نورو کوترو پر تا سترګې ولګیدلې ټولې ستا له ویرې له خوږ نه والوتلې او دا څکه چې د هغوی له تاسره مینه نشته؛ زه چې له تا سره مینه لرم ستا راتلو ته مې لارې څارلې. سپینې ناروغې کوترې خپلې خبرې اوږدې کړې: زه هسې هم

ناروغه یم، د ناروغتیا له لاسه مرمه، ښه شو چې ته راغلې او ومې خورې، دا چې زه خوشې خاورې شم او یا مې چینجي وخوري ښه او غوره داده چې ته مې وخورې خو زما یوه خبره ومنه او عمل پرې وکړه ستا پکښې ګټه او خیر دی. ګیدړه چوپه خوله وه او له دې ویرې یې خوله نه بیرته کوله چې سپینه کوتره یې له خولې نه وانه لوزي د سر په ښورولو یې ترې د خیر او ګټې د خبرې پوښتنه وکړه: سپینې کوترې زیاته کړه زه په یوې بزرګې او ستانه کورنۍ پورې تړلې او اړه لرم. تاته به هم د دې خبرې پته وي چې لوی، لوی ښکاریان هیڅکله سپینې کوترې نه ښکار کوي دا کار ورته ناروا او وبال ښکاریږي دا ډیره مشهوره خبره ده چې څوك سپینه کوتره ښکار کړی یا په دوارو سترګو ړندیږي او یا یې پښې او لاسونه ګوزڼ وهي او شلیږي او په دغسې نورو ډول، ډول کړاوونو اخته کیږي. زه دانه وایم چې ته ګوندې ما مه خوره زما په خوړلو ستا غاړه نه بندیږي، زما خوړل او ښکارول تا ته روادي تا ته زما خوړل هیڅ ډول زیان او تاوان نه رسوي، ځکه چې زه ناروغه یمه د جوړیدو تمه مې نشته خوشې چې خاورې شم او یامې پیشو او کارغان وخوري ښه داده چې ته مې وخورې مخکښې له دې چې ته زما په خوړلو پیل وکړې یو ځل د دغه خوږ رښو اوبو ته لاړه شه خوله دې په اوبو پریمنځه بیامې وخوره که تا خپله خوله پریمنځله او بیا دې زه وخوړمه نو خوله به دې خوږه او بختوره شي په راتلونکي وخت کښې چې ته هر شی خورې د شاتو غوندې به در باندې خوږ لګي او یوه ورځ به بیله ښکاره دربانډې نه تیریږي. خوامخوا به دې د یو شي ښکارول په برخه کیږي. سپینې کوترې ګیدړې ته داهم وویل: کله چې ته خپله خوله پریمنځې ما خپلې مخې ته کښینوه او د سترګو لاندې مې ونیسه چې زما د الوتلو ویره دې له زړه نه ووزي، زه ناروغه یمه، د الوتلو توان او وس نه لرم.

ګیدړې د سپینې ناروغې او ښکلې کوترې دغه خوږې او غوړې خبرې و منلې ژر دخوږ رښو اوبوته ورنژدې شوه، کوتره یې په خپل مخکې کښینوله او د

سپینې کوترې له وینا سره یې د خپلې خولې په پریمنځلو لاس پورې کړ، سپینې کوترې بیاهم له چالاکۍ او هوښیارۍ نه کار واخیست او حیله ګرې ګیدړې ته یې وویل: ددی لپاره چې ډیره نیکمرغي او پوره ثواب دې په برخه شي او زما غوښه درته د تبرك نښه او ټوټه وګرځي نو ټول شونډك دې ترسترګو پورې په دغو رڼو اوبو کښې ورښکته کړه، دا اوبه هم د یوې بزرګې چینې اوبه دي ستاپه نیکمرغه کولو کښې له تاسره مرسته کوي. د ګیدړې له دماغ نه هوښیارې وتښتیده د کوترې له سپارښتنې سره سم یې خپل شونډك تر سترګو پورې په اوبو کښې ننه ویسته، سپینې کوترې له دغه وخت او فرصت نه استفاده وکړه د ګیدړې په سترګو کښې اوبه ننوتې سپینه کوتره یې له یاده ووته، سپینې کوترې خپل وزرونه خواره کړل، والوتله او پر ګیدړې یې غږ وکړ د چاچې خوله او لاسونه د نورو په وینو سره وي هغه هیڅکله نه پاکیږي. سپینې کوترې خپل ځان نورو کوترو ته ورساوه، ناروغي یې هیره شوه، ګیدړه د اوبو په غاړه حیرانه ولاړه وه، کوترې او خپل ځانته په غوسه وه اوبو ته به یې وکتل خپله څیره به ورته تر سترګو شوه په زړه کښې به یې تیر شول هسې خلك وایي چې ګیدړه هوښیاره او ځیرکه ده.

# تګې

وايي په يو ودان او آباد کلي کښې د شتمنو او د ډېرو زمکه درلودونکو کروند ګرو په منځ کښې د دوه ورو پټيو خښتن بزګر هم د غريبۍ شپې او ورځې تيرولې، دغه غريب او بيوزلي بزګر يو ۱۲ لس کلن زوی هم درلوده، زوی يې د کلي د مشر سره مزدور و. د بزګر ميرمنې به هم د خپل کور له کار ونوبرسيره د نورو شتمنو په کورونو کښې يادچالوښي او کالي پريمنځل او يا به يې ېرستنې ګنډلې. د کلي شتمنو ميرمنو به ورته کله ناکله خير، خيرات او د کار اجوره ورکوله او بيوزله بزګر به ټوله ورځ په خپلو دغو دوه پټيو کښې په کار او زيار بوخت و. د کلي ځينو زمکه والو د دغه بيوزلي بزګر دغو دوه کوچنيو پټيو ته خپلې ورې سترګې نيولې وې چې څه وخت به ورته د دغه غريب بزګر دغه دوه پټي په لاس ورځي خو ده هغه کوله چې د پټيو ګرووالو او پلور لوته اړ نشي هغه د کلي د ځينو شتمنو ځمکه والو په شوم نيت پوهيدلی و.

د دغه بيوزلي بزګر وسه يوې ځانګړې کولبې ته نه رسيدله، ده يو خر او يو غويي درلوده په خره به يې کله، کله له غره څخه لرګي راوړل او کله به يې پرې پټيو ته سرې چلولې او يا به يې په پيسو د خلکو پيټي وړل.

کله به چې د کولبې وخت راغی نو بيوزلي بزګر به خر غريب له غوايي سره جوړه کړ په دواړو به يې جغ کښيښوده، سپاره به يې ورپسې وتړله او کولبه به

يې کوله. خر په زړه کښې د بزګر نه خپه و ځکه چې ښښتن يې ترينه هم د خر او هم د غوايي په توګه کار اخيسته خو بيا هم خر يوه ورځ هم په کولبه کښې له غوايي نه وروسته پاتې نه شو. يوه ورځ چې جوار وريبل شول او يوه مياشت وروسته د غنمو وخت رانژدې شو او د کلي کروند ګرو د غنمو په کرلو پيل وکړ بيوزلي بزګر هم خپل دواړه پټي اوبه او وتره کړل چې داړولو شوه نو سبا سهار وختي يې، خر غريب او غوايه دواړه پټي ته بوتلل، دواړه يې ځنګ ته ودرول جغ يې ورته په غاړې کښيښوده، سپاره يې ورپسې وتړله، پټی لانيمايی ته نه و يوې شوی چې غوايي ځان په ټګی ناجوړه واچاوه او د کولبې په وخت کښې يې د هر ګام سره زګېروي کول او ستميده. له بزګر سره په زړه کښې ويره پيدا شوه که چېرې د پټي اړولو او کولبې کولو ته دوام ورکړي ښايي غويی يې يا مړ شي او يا بيخی له پښو نه ولويږي نو ځکه يې کولبه بس کړه خر او غوايي دواړه يې کورته راوستل او دواړه يې اخور ته وتړل او واښه يې ورته واچول، خره د وښو په خوړلو پيل وکړ خو غوايي له ټګی خپل سرخوړند نيولی و او وښو ته يې خوله هم ورنه وړه، بزګر په زړه کښې ډېر خپه و که غويی جوړ نشي او له منځه لاړ شي نو بيا به څه کوي؟ د ډيرو زياتو کړاوونو سره به مخامخ شي د بل غوايی د اخيستلو وس هم نه لري. په بزګر دغه نيمه ورځ او ټوله شپه د غوايي د دروغجنې او ټګيجنې ناروغی له امله په انديښنو کښې تيره شوه او تر سبايی له غمه سترګې پټې نه کړې.

سهار چې بزګر بله چاره ونه ليدله او وتره شوي پټي ترې وچيدل نو مجبور شو چې پاتې نيمايي پټی يوازې په خره غريب واړوي نو خر يې مخکښې کړ جغ يې ورته په څټ کښيښوده او سپاره يې ورپسي وتړله او تر لوړ مازيګر پورې يې يوازې په خره باندې کولبه وکړله خر دومره ستړی شو چې نورې ګام نشو اخيستلای. بزګر چې د خپل خره سره پټي ته تللی و غوايی ژر، ژر په اخور کښې ټول پاتې شوني واښه وخوړل. خره هم د ټلګ غوايي غوندې د غوايي د دروغجن پلان او بهانو پرضد پلان جوړ کړ. کله چې کورته راغی د غوايي په ځنګ کښې خپه

او حیران و دریده. بزګر وابنه راوړل خره هم د غوایي غوندې وښو ته خپله خوله ورنه وړه.

غوایي چې د خره خواشینی او ناروغی ته وکتل پټ په زړه کښې ډیر اندیښمن شو. غوایي له خره نه په حیرانتیا پوښتنه وکړه: ولی وابنه نه خوری ته هم لکه چې ماغوندې ناروغ شوی یې، څنګه همداسې نه ده؟ خره یو سوړ او سیلی وایست، د ټلې غوایي په ځواب کښې یې وویل: ناروغ نه یم نن بزګر ستا په هکله یوه خواشینوونکې او بوږنوونکې پریکړه وکړه چې زه یې ډیر خواشینی کړم او بیخي مې اشتها وسوځیدله هیڅ شی مې زړه ته نه کیږي. د غوایی ویښتان له ویرې جلې ودریدل، له ډاره یې غوني زیږه شول په حیرانتیا یې په یوې غمجنې لهجې د خره نه پوښتنه وکړه: ربښتیا راته ووایه چې بزګر زما په هکله څه ډول پریکړه کړې چې ته پرې دومره خواشینی یې؟ خره خپل دواړه غوږونه ورپول بیایې هم یو سوړ اوسیلی له خولې وایست او وې ویل: په داسې حال کښې چې بزګر پرما کولبه کوله یو قصاب په پوله تیریده، ودریده سلام یې واچاوه او بیایې له بزګر نه پوښتنه وکړه چې: چیرته درته دغوایي او غوا پته نشته چې څښتن یې پر ماوپلوري؟ بزګر قصاب ته وویل: زما د کولبې غویی لټ شوی کولبه نشی کولی د هغه برخه کار هم دغه خر غریب کوي سبا زموږ کلي ته راشه که جوړ راغلو زه به درباندې خپل لټ غویی وپلورم. قصاب ډیر خوشاله شو وې ویل: په نرخ او بیه سره نه ورانیږو، زه د قصابی لپاره هیڅ څاروی نه لرم. خره زیاته کړه ښایي د لمر ختو سره سم قصاب راشي او تاله ځان سره د قصابی لپاره بوزي، که قصاب ستا پر مری چاړه راکاږي زه خو به له غمه مړ شم ځکه ما اوتا په دغه اخور یو ځای ډیره موده وابنه خوړلي؛ دواړه په خپلو کښې خواږه ملګري وو؛ د بزګر کره مو د ژوند سرې او تودې تیرې کړې که سبا ته رانه لاړشې او قصاب دې ټوټې کړي زه به یوازې څه کومه؟ زما خو به له ډیره غمه زړه وچوي. غوایي چې د خره خبرې واوریدلې په زړه کښې یې د ډار سیلی ولګیدله د قصاب تیره چاړه ورياده شوه غوني یې زیږه شول. یو

ساث لاتیر نه و چې غوایي په اخور کښې په وښوخوړلو پیل وکړ. خره ورته وویل:
داچې اوس ته جوړ شوې زه ډیر خوشاله شوم زما هم وښو خوړلو ته زړه وشو اشتها
مې راغله دا دي زه به هم له تاسره په ګډه او یو ځای واښه وخورم. غوایي د
پخوا غوندې خپله ښه ونیوله چې بزګر یې په قصاب ونه پلوري.

شپه چې تیره شوه لمرخاته بزګر راغی چې ګوري غوایی جوړ تیار دی
د پخوا غوندې واښه خوري روغ رمټ ښکاري له خره سره یو ځای یې پټې ته
بوته او کولبه یې پرې وکړه او په دې توګه د لټ او ټلټ غوایي درواغو او ټکی
پلان د خره د دروغو او مکر پلان شنډ کړ.

# د ماشوم زړه

ډېر پخوا د یو لوی او پراخه هیواد پاچا یو ناڅاپه دزړه په کلکې ناروغۍ اخته شو. د دغې کرغېړنې ناروغۍ له امله پاچا ته دماغي او عصبي ناروغتیا او کړاو هم پیدا شو. د دغو دوو خطرناکو ناروغیو له امله نه یوازې دا چې د هغه د دربار وزیران او نور کسان له ستونزو سره مخامخ شول د پاچا له خوابه ورته بد ردویل کیدل، بلکې د هیواد زیات خلك د ده د لاسه له کړاوونو او ستونزو سره لاس او ګریوان شول او د هیواد کورنۍ چارې په ټپه ودریدې او د ملك حالت له یوې ورځې نه بلې ته ویجاړیده. چا به پاچا ته دعا کوله او د هغه د روغتیا غوښتنه به یې کوله او چابه پټ په زړه کښې ویل: خدای (ج) دې موږ از زموږ ملك د دغه ناروغ او عصبي پاچا له شرنه وژغوري، له کومې ورځې راهیسې چې هغه ناروغ شوی وطن یې په اور کښې وسو او خلك یې له راز، راز کړاوونو سره مخامخ کړل. دغه او دغې ته ورته ښیرې او دعا ګانې د ورځې خبره ګرځیدلې وه چا به د پاچا ستاینه او چا به یې غندنه کوله. پاچا هره ورځ خپل کور او دربار ته ډلې، ډلې طبیبان او حکیمان راغوښتل او د هغوی له طبی لارښوونو سره سم به یې دارو درمل راوړل خو د دې پرځان چې د پاچا روغتیا په برخه شي له یوې ورځې نه بلې ته بدتریده. پاچا خو ځلې بهر ته هم لاړه خو هلته یې هم طبیبان د زړه په علاج بریالي نشول. کله چې پاچا د کورنیو او بهرنیو هیوادونو د طبیبانو او درملو

نه ناهیلی شو نو د خپل هیواد نامتو او پیژندل شوي نجومیان یې خپل ځانته راوغوښتل او د خپل راتلونکي برخلیك په هکله یې ترې پوښتنې وکړې او ځرګندونې یې ترې وغوښتې او وې پوښتل چې د خپلې ناروغتیا لپاره له کومو نورو لارو وچارو نه کار واخلي؟ ډیرو نجومیانو د پاچا په مخکښې همدومره وویل: ستاسو روغتیا د خدای (ج) د فضل او مهربانۍ او د طبیبانو د پوهې، غوره کتنو او ګټورو درملو پورې اړه لري. موږه پدې نه پوهیږو موږ ټول به ستاد رغیدو لپاره دعا کوو. خدای دې داسې طبیب په هیواد کښې پیدا کړي چې ستاسو د زړه په رنځ پوه شي. د دغو نجومیانو له ډلې نه یو نجومي پورته شو خپل دواړه لاسونه یې د درناوی په خاطر په سینه کښیښودل او په یوه مودبانه لهجه یې وویل: زموږ د هیواد ګرانه او محترمه پاچا! تاسو زموږ د ملك ویاړ او د اولس د سر سیوری یاست؛ وطن په تاسو ودان او اولس په تاسو نیکمرغه دی. زموږ خوښي ستاسو په روغتیا پورې اړه لري، له کومې ورځې راهیسې چې تاسو ناروغه شوي یاست ټول ملك ناروغ دی او اولس له بد مرغۍ سره لاس او ګریوان دی. نجومي د خپلې غوږه مالۍ لمنه اوږده کړه وې ویل: خدای دې تاسو زموږ له سره نه کموي، خدای مه کړه که تاسونه اوسئ ولس به یتیم او ملك به له سختو ستونزو سره مخامخ شي؛ که تاسو اجازه راکوئ نو موږ به اوس لاړ شو زه به د شپې له خپلو ټولو نجومي مهارتونو نه کار واخلم، خدای مهربان دی چې یوې مثبتې نتیجې ته ورسیږو او ستا د بیا روغتیا له پاره ګټورې لارې چارې په لاس راشي.

پاچا دغه نجومي ته په دې خبرو ډیر انعامونه ورکړل او نورو نجومیانو ورته خړ، خړ کتل. ټول نجومیان لاړل.دغه یو نجومي چې پاچا ورته دغوړو وعدو په مقابل کښې ښه، ښه انعامونه ورکړي وو ټوله شپه خپل نجومي کارونه او چلونه په کار واچول. کله به د خیال په وزرونو د آسمان ستوروته پورته شو کله به یې د غرونو له څوکو سره خبرې وکړې او کله به په خیال کښې د سمندرونو تل ته ښکته شو څو شیبې به یې نجومي کتابونه له سترګو تیر کړل. د دې ټولو هلو ځلو په پای

کښې يې په فکر کښې وګرځيدل که پاچا د يو داسې هلك- چې په خپل کلي کور کښې د هغه نه بل ښکلی هلك نه وي د مور او پلار يوازينی زوی او عمر يې د لسو کلونو زيات نه وي- زړه ځانته وريت (کباب) کړي او درې وخته يې وخوري ښايي پاچا له دغې بدې او ناوړې خطرناکې ناروغۍ نه جوړ شي

نجومي د پاچا دربار ته لاړ پاچا ته يې خپل معلومات وړاندې کړل د نجومی دغه خبرې د پاچا خوښې شوې په زړه يې کښيناستې. پاچا د ده د هڅو څخه مننه وکړه بيايې هم نجومي ته انعامونه ورکړل. نجومي د پاچا له حضور څخه رخصت شو.

پاچا ژر دخپل دربار وزيران راوغوښتل او سپارښتنه يې ورته وکړه چې ډير ژر په ټول هيواد کښې دا خبر خپور کړئ چې د نجومی له وينا سره سم يو داسی هلك چې د مور او پلار يو زوی وي، عمر يې د لسوکلونو نه زيات نه وي او هم د هغه په څير بل ښکلی هلك نه وي ډير ژرپيدا او ماته يې راولي. دوه ورځې وروسته يو حاکم په همدغو اوصافو يو هلك پيدا کړ. حاکم د هلك مور او پلار را وغوښتل د پاچا له امر او ضرورت نه يې خبر کړل. د هلك مور او پلار په لومړي وخت کښې دې کار ته غاړه نه ايښودله خو چې حاکم ورته ډيرې پيسی ورکړې نو د خپل زوی ورکولو ته يې غاړه کښيښودله. مور او پلار په خپله خوښه د پيسو په بدل کښې خپل زوی حاکم ته وسپاره هلك چې د خپل مور او پلار څخه بيليده سترګې يې له اوښکو ډکې، ډکې کيدې خو مور يې ورته ويلي وو چې ته پاچا د دې لپاره غوښتی يې چې تا ته ښکلي کالي وکړي، پاچا زوی نه لري په تابه د خپل زوی مينه اوسود کوي، کله، کله به موږ هم درځو، حاکم د هلك په هکله د قاضي فتوا او سلا هم واخيسته حاکم سبا هلك له ځان سره بوته او په سلسله د پاچا دربار ته ورسيد. د دربار وزير پاچا د هلك له راتګه خبر کړ. پاچا هم يو لوی قاضی راوغوښت، د نجومي څرګندونې او خپل ضرورت يې ورته بيان کړل. قاضي پورته شو خپل دواړه لاسونه يې په سينه کښيښودل پاچا ته يې د غوږ مالۍ نه په ډکو

خبرو داسې وويل: معظم پاچا تاسو د ملك سيورى او ستركې ياست د ملك او اولس خوښي او روغتيا ستاسو په روغتيا او خوښۍ پورې اړه لري، خداى دې نه كاكه معظم پاچا نه وي ټول ملك او اولس يتيم كيږي او له ټولو نعمتونو او پر مختګونو څخه بې برخې كيږي نو د هلك زړه دې د هغه له سينې څخه په بشپړه توګه راوايستل شي، وريت دې شي، معظم پاچا دې په خوند، خوند وخوري چې دپخوا غوندې بيرته روغ شي او په ملك او اولس يې د روغتيا زيرى وشي. پاچا د دربار د دغه لوى او پوه قاضي له حكم او پريكړې نه مننه وكړه او يو څه پيسې يې ورته د انعام په ډول وركړې، قاضي لاړ او پاچا هلك چې تر اوسه په اصلي حقيقت نه و پوه- راوغوښت. پاچا امر وكړ چې دغه هلك دې له ده سره وي هيڅوك ورته راتلاى نشي. پاچا هلك ته د نجومي د پريكړې، د هغه د مور او پلار د سلا او رضا، د قاضيانو د فتوو او حكمونو په باره كښې اوږدې خبرې وكړې او ورته يې زياته كړه زما زړه ستا زړه ته اړتيا لري. په دغه وخت كښې لوى خداى دغه لس كلن هلك ته دومره هوښيارتيا او زړورتيا ور په برخه كړه چې پاچا يې خبرو ته حيران پاتې شو.

هلك لومړى وژړل د پاچا په مخكښې يې د خپلو اوښكو مرغلرې تويې كړې او بيايې په خټ، خټ وخندل. پاچا د لس كلن د ګل غوندې ښايسته او ښكلي هلك ژړا او خندا ته هك پك پاتې شو. پاچا په ډيرې حيرانتيا سره د هلك نه د ژړا او خندا پوښتنه وكړه "بچيه څنګه دې زما په خبرو لومړى وژړل او بيا دې وخندل"؟ هلك پاچا ته وويل: ومى ژړل خپل خوار نصيب او بدې برخې ته تاسو پوهيږئ كله چې يو وړوكى ماشوم د بل ماشوم له خوا ووهل شي نو خپل مور او پلار ور پسې راولي چې دده غچ ترې واخلي كه خبره له دې نه غټه شي نو لاړ شي حاكم ته عرض وكړي كه پېښه په قاضى پورې اړه پيدا كړي قاضى ته ليږل كيږي كه خبره له دينه هم غټه شي موضوع نايب الحكومه ته سپارل كيږي، نايب الحكومه او د ولايت قاضي پرې غور كوي او كه په پاچا پورې اړه ولري دوسيه د

پاچا نظر او حضور ته وړاندې کېږي. په داسې حال کښې چې زما بد مرغه او بدنصيبه په هکله زما خوږو مور او پلار خپل رضايت ښکاره کړی او زما زړه يې چې د مينې او ارمانونو کور دی د څو پيسو په بدل کښې په تا پلورلی، حاکم، منجم، ستاد دربار لوی قاضي او تاسو ټول سلا شوي او پرېکړه او فتوه شوې چې ستا زړه ته بايد زما زړه وريت کړي او ويې خورې. او ومې خندل ځکه چې دا زموږ ملك او اولس څومره بدبخته او بد مرغه دی چې تا غوندې ناپوهه، په زړه کلك، بې رحمه او ظالم پاچا لري؟ زه نه پوهيږم چې ستا په سينه کښې د غوښې زړه دی او که تور کاڼی؟ آيا تا کله ليدلي او اوريدلي چې په زړه ناروغ دې د روغ انسان زړه ځانته وريت کړي هغه دې وخوري او جوړ دې شي؟ هلك خبرې کولې او پاچا ورته غوږ نيولی و هلك زياته کړه: زه په دې خپه نه يم چې ته زما زړه د خپل زړه له پاره وريت کړې خپه په دې يم چې له يوې خوا به ته جوړ نشې او له بلې خوا به زما د ژوند او ارمانونو قاتل هم شې او د ملك خلك به دې سرې خور او زړه خوړونکی پاچا بولي؛ خلك به درنه کرکه کوي، غندي به دې اوهم به ستا د دغه ناوړه او ظالمانه عمل آوازې او انګازې په ټول ملك او نړۍ کښې خورې شي. پاچا د دغه هوښيار او ښکلي هلك د غوخوږو او پخو خبرو ته حيران او په تعجب کښې پاتې شو. د پاچا په زړه کښې سمدلاسه زړه سوی او خواخوږي پيدا شوه په فکر کښې يې وګرځيدل چې نجومي څه ناوړه مشوره او د دربار خلکو او قاضيانو څومره ظالمانه فتوه ورکړې، له چوکۍ نه پورته شو، د هلك د هوښيار تيا او زړورتيا ستاينه او د سپينو خبرو له امله يې ترې مننه وکړه په غيږ کښې يې ونيوه پر مخ او تندي يې ښکل کړ او ورته يې وويل له همدغې ورځې نه ته زما د زوی پر ځای يې خوښه دې چې خپل مور او پلار ته ځې او که دلته له ما سره اوسې. هلك له يو سوړ اوسيلي سره وويل: داچې مور او پلار مې زه د پيسو په بدل کښې پر تاسو پلورلی يم هغوی ته نه ورځم. پاچا امر وکړ چې هغه نجومي ژر را وغواړئ چې ده ته يې دغه ډول غلطه سلا او مشوره ورکړې وه. نجومي را وغوښتل شو د پاچا په

مخکښې څوړند سر ودرید پاچا ورته وویل: تا ناپوهه ما ته ډیره ناوړه او بده مشوره راکړه چې زما راتلونکی تاریخ یې له بدنامۍ او بد شهرت سره مخامخ کاوه، پاچا امر وکړ چې نجومي د تل لپاره له دغه ډول ناوړه مشورو او سلاګانو خلاص شي نو سر یې پرې کړئ.

د خدای قدرتونه ګورئ څو ورځې وروسته پاچا پرته له درملو روغ شو. د خپل هیواد د آبادۍ او د خلکو د نیکمرغۍ لپاره یې داسې لارې چارې وسنجولې چې ټول خلك ورته هك پك پاتې شول.

نور نو خلکو د ښیرو پرځای پاچا ته دعا ګانې کولې د هغه د رغیدو له امله یې خوښي څرګندوله او د هغه د عمر اوږدوالی یې غوښتهٔ.

# مکاره ګیدړه

د ځو لوړو، لوړو غرونو په منځ کښې یو سمسور او د ګڼو ډول، ډول ونو ځنګل و. دغه ځنګل د ډیرو لویو وړو غرنیو او ځنګلي ژوو او ځارویو او ځناورو ګڼه ګور و. پسرلی به له ډیرو لیرې ځایونو نه د دغه ځنګل ونو او بوټو ته د مرغانو او توتیانو سیلونه راتلل او دلته به یې د پسرلي خوږې او رنګینې شپې او ورځې او د اوړي تودې میاشتې تیرولې په ونو کښې به یې ځالې جوړولې او بچي به یې له هګیو ایستل. په دغه سمسور او پراخه ځنګل کښې د نورو ځناورو او زمریو په ځنګ کښې یو غټ او ظالم زمري هم ژوند کاوه. دغه زور ور او ظالم زمري خپل ځان د دغه ځنګل پاچا باله؛ د ځنګل ټول ژوي او ځناور یې په زور او جبر دې ته اړ کړي وو چې د ده خبره ومني او ټول ورته اطاعت وکړي. ژوي او ځناور د دغه زورور زمري له لاسه په ډاډه زړه په ځنګل کښې نه شول ګرځیدای. شپه او ورځ د زمري له لاسه خواشیني او له ګوابښ سره مخامخ وو زیات وخت به وږي تږي په خپلو غارونو کښې د زورور زمري له ویرې او ډار نه پټ وو. زوره ور زمري له دغه حالت نه خوند اخیسته او په خپل زور او تیري یې ویاړ کاوه.

د اولس خلك هم د دغه زمري له ویرې په لرګیو پسې ځنګل ته نشول تللای او نه شپنو د زمري له ډاره خپلې رمې دغه ځنګل ته بیولی شوې. ټولو ژوو او ځناورو دغه زوره ور او ظالم زمري ته چې د ټول ځنګل واك یې په لاس کښې

و، په کرکه کتل ټولو ورته ښيرې کولې او په دې چورت کښې وو چې څنګه او کله به د دغه زوره ور او تيري کوونکي زمري له ډار او خطر څخه بيغمه شي. د دغو ځناورو او ژوو په ډله کښې يوه زړه ګيدړه هم په کړاو اخته وه. ګيدړه به چې کله د ځنګل ليرې او نژدې کليو ته د چرګانو په ښکار پسې لاړه بيرته د زمري له ويرې ځنګل ته نشواى راتللى هر وخت به يې د زمري له ډاره ځان نيمه شپه ځنګل ته را رساوه په دغه وخت کښې به زمرئ ويده و. دغه زړه ګيدړه ډيره هوښياره او مکاره وه. پټه، پټه په نورو لويو او وړو وځناورو و ګرځيد له او وې ويل: زه کولاى شم چې تاسو د دغه زوره ور او ظالم زمري له شر او خطر څخه وژغورم په دې شرط چې تاسې ټول له ما سره ژبه وکړئ چې له تاسو څخه هر يو کله ښکار پيدا کړ ماته به پکښې برخه راکوئ. د ګيدړې په دې خبره ټول لوى او واړه ځناور خوشاله شول او له مکارې ګيدړې سره يې وعده وکړه چې د ښکار غوړه او ښه برخه به دې ته ورکوي. يوه ورځ چې زمرى له ځنګل نه د يوه غره سرته ختلى او له هغه ځاى نه يې لاندې د پرتو سيمو او کلو ننداره کوله په داسې حال کښې چې ګيدړې يوه چاغه چرګه په خوله کښې نيولې وه ځان زمرى ته وورساوه زمري ته يې سلام او احترام وکړ چرګه يې زمري ته په مخکښې کښېښودله، زمرى د چرګې په ليدلو ډير خوشاله شو ځکه چې يو څه وږى شوى و. زمرى د چرګې په خوړلو لګيا شو او مکارې ګيدړې په ژړا پيل وکړ. د زمري چې د ګيدړې ژړا ته پام شو له ګيدړې نه يې پوښتنه وکړه: ولې ژاړې د ځنګل د ځناورو نه خو به چادر سره تيرى نه وي کړى که چا درته څه ويلي وي ماته يې راوښايه چې ستا په مخکښې ورته کلکه سزا ورکړم؟ مکارې ګيدړې زمري ته وويل: د ځنګل پاچا دې ژوندى وي د هغه له ويرې هيڅوک ماته بدهم نشي کتلاى. زمري بيا مکاره ګيدړه وپوښتله: نو ولې ژاړې؟ مکارې ګيدړې په ژړه غوني لهجه زمري ته ځواب ورکړ: د ځنګل پاچا تاته چې ګورم ماته ستاسو پلار راياد شو د هغه زړه ورتيا، غښتلتيا او ښکلې څيره را په زړه شوه ته بيخي هغه ته ورته يې! ستا او د هغه په رنګ او څيره

کښې هیڅ توپیر نشته، ستا د پلار هم د غرونو چکر او د غرونو په سرونو ګرځیدل خوښ وو او ستا هم، کاشکې چې ستا پلار ژوندی وای چې هغه مړ کیده، کاشکې د هغه پر ځای زه مړه شوې وای. ستا په پلار زه ډیره ګرانه وم هغه به چې کله ښکار وکړ زه به یې یاده وم خوامخوا به یې پکښې زما برخه کوله؛ ما هم هغه ته د زړه له کومې احترام کاوه زما او ستا د پلار پدې دوستۍ د ځنګل نور ځناور خپه وو او رخه یې پرې کوله. ته هغه وخت ډیر کوچنی وې پلار به دې له ځان سره ګرځولې چې د ښکار کولو چل زده کړې ستا نور ټول خویونه خپل پلار ته ورته دي خو د هغه یو ستر عادت چې د نړۍ په یو زمري کښې نه وله تانه هیر شوی نو ځکه د ځنګل اوسیدونکې درپسې خبرې کوي. د مکارې ګیدړې پدې خبرو زمری په چورت کښې لاړ په حیرانتیا یې له مکارې ګیدړې نه پوښتنه وکړه: ما د خپل پلار کوم خوی او عادت هېر کړی. د مکارې ګیدړې په سترګو کښې بیا د مکر او ښکې وګرځیدلې په ژړغوني آواز یې زمري ته ځواب ورکړ: ستا پلار دومره زړه ور او پهلوان و چې د دې غره له سر نه به یې ټوپ کړ او د هغه بل غره په سر به ودریده او ټول ځناور به یې ننداره ته هك پك پاتې شول. د مکارې ګیدړې په خبرو زمری وغولیده په زړه کښې یې وګرځیدل زه نو د خپل پلار نه څه کم یم که زه د هغه غوندې نشم د ځنګل اوسیدونکي به راپسې خبرې کوي، زه به ورته ډارن ښکاره شم بیا به یې رانه سترګه نه سوځیږي ورو، ورو به زما له امر او غوښتنو نه سر غړاوی کوي زه هم باید د غره د دې سرنه د غره هغه بل سر ته ټوپ کړم.
زمري ګیدړې ته وویل ته ګوره چې زه د خپل پلار دغه خوی او عادت څنګه پرځای کوم. ګیدړه موسکۍ شوه زمري ته یې زیاته کړه ښه شو چې زما د زړه ارمان پوره شو چې ته اوس د دې غره د سر نه د هغه بل غره سر ته ټوپ وهې دا کار هر څوك نشي کولای. ګیدړه په زړه کښې خوشاله وه چې څنګه یې په خپلو غولوونکو خبرو زمری تیر ایسته په لاپو او ټپاکو یې راوسته.
زمري ګیدړې ته غږ کړ ځیرشه چې څنګه د دې غره نه هغه غره ته ځان

رسوم. زمري له ليرې نه را منده کړه کله چې د غره سر ته راورسيد لاندې يې په ژوره کنده او ګړنګ سترګې ولګيدلې په زړه کښې يې ويره تيره شوه سترګو يې تور وخوړ او د غره په څنډه ودريده. مکارې ګيدړې بيا له سترګو اوښکې توی کړې وې ژړل. د زمري ورته پام شو وې پوښتله ولې دې وژړل؟ ګيدړې بياهم له مکر نه کار واخيست: ستا پلار مې سترګو ته ودريده هغه به هم له ليری نه رامنده کړه، يو يا دوه ځلې به د غره په څنډه ودريده پورته او کښته به يې وکتل خو په دريم ځل به يې په ټوپ ځان هغه غره ته ورساوه، د زمري په زړه کښې وګرځيدل که چيرې له ټوپ وهلو نه ډډه وکړي يو خو به ګيدړې ته کم راشي او بل که د ځنګل ژوي او ځناور خبر شي نو ډارن به ورته ښکاره شم. دوه درې ځلې يې له ليرې نه د ټوپ لپاره د غره تر څنډې پورې رامنده کړه خو و به ډار شو. څلورم ځل يې رامنده کړه سترګې يې پټې کړې ټوپ يې کړ. د دې پر ځای چې د بل غره څنډې ته ورسيږي په ژورې کندې او ګړنګ کښې ولويده او ټوټې- ټوټې شو. مکارې ګيدړې د غره له سر نه لاندې ګړنګ ته کتل او د زمري ساده ګۍ او ټوټې کيدو ته په خندا او ګډا شوه. مکارې ګيدړې منډې کړې. د ځنګل ټول اوسيدونکی يې را خبر کړل. د زمري د وژلو او ټوټې کيدلو کيسه يې ورته وکړه ټول له خوښۍ نه په کاليو کښې نه ځاييدل او ډله، ډله د زمري ليدو او نندارې ته راتلل، د ځنګل ټولو اوسيدونکو له مکارې ګيدړې نه مننه او خوښي څرګنده کړه، د هغه هوښياري يې وستايله. د ځنګل ژوی او ځناور د ظالم او ځان پالونکي زمري چې د ټول ځنګل واک يې په زور په لاس کښې اخيستی او ځان يې د ځنګل پاچا باله د تل لپاره له شر او خطر نه بيغمه شول؛ ټولو د ګيدړې درنښت کاوه په ټولو ګرانه وه په ځنګل باندې ارامۍ او نيکمرغۍ خپل وزرونه خواره کړل او د آزادۍ نغمې او ورمې په لوی او پراخه ځنګل کښې خورې شوې.

# د سروزرو کب

د دوه لويو او لوړو غرونو نه څه راکوز په يوې پراخه سيمه کښې ګڼ شمير خلك ميشته شوي وو. د دغو کورنيو د نده، کار او کسب کرنه او مالداري وه. بزګرو ډيرې زمکې او مالدارو ډيرې ميږې او وزې درلودې. د دغې پراخې سيمې له منځه يو ځپانده او مست سين له پورته نه ښکته بهيده. دغه ځپاند سين د دغو دوه لويو او لوړو غرونو د چينو، باران او واورو د اوبو د يو ځای کيدو نه منځ ته راغلی و. د دغې لويې او پراخې سيمې بزګر او مالدار ډير خپه او مرور وو، په کر که به يې ورته کتل او په زړه کښې به يې ورته ښيرې کولې او د سيمې لپاره يې يو لوی مصيبت او زيان باله. د سيمې کروند ګر او مالدار به چې سره يو ځای شول نو د دغه لوی او ځپانده او مست سين له تاوان او زيان څخه يې سر ټکاوه، بدردبه يې پسې ويل او سين يې د سيمې له پاره يوآفت ګڼله. ټولو به همدا يوه خبره کوله که دغه خونړی او بد مرغه سين زموږ د سيمې له منځ څخه نه وای تير شوی ولې به يې زموږ اولس په دوه برخو ويشلی او بيلو لای چې اوس مو په خپل منځ کښې راشه درشه کمه شوې او اړيکې مو دوستانه نه دي. دې سين خو پرته له زيان او تاوان څخه موږ ته هيڅ ګټه ونه رسوله. د دې پرځای چې زموږ زمکې او کروندې خړو بې کړي زموږ ودان پټي ورانوي، فصلونو او کروندوته مو تاوان رسوي. د دې سين اوبو.زموږ ډيرو لږو زمکو ته خير او ګټه رسولې او نورې زمکې مو للمې دي

او د یوه څاڅکي باران له پاره یې آسمان ته سترګې نیولی. کله، کله دغه خونړی سین زموږ واړه ماشومان او ځوانان له ځان سره وړي او ژوند ته یې خطر پیښوي. د سیمې کروند ګراو مالدار خلك پدې پوه نه شول چې ملامتي په دوی کښې ده او که په څپاند سین کښې. دغه څپاند سین چې د دغو خلکو له هیواد نه بل ګاونډی هیواد ته ور اوښت نو هغوی ټول ترینه خوښ او راضي وو. د دوی د ګاونډیو هیوادو د دغه سین په غاړه پرتو سیمو او خلکو دغه سین د لوی خدای رحمت او لوی نعمت باله. د سین له اوبو نه یې د خپلو مځو او پوهې په وسیله په زړه پورې ګټه اخیسته، د سین لپاسه یې څو ځایه پلونه جوړ کړي وو. د ویالو، بندونو او کانالونو په وسیله یې دسین په اوبو خپلې زمکې او باغونه خړو بول؛ د سین دواړه غاړې یې په غټو، غټو تیږو کلکې او پخې کړې دي او د چا خبره سین یې مهار کړی او د خپل واك لاندې راوستی و، د سین او د دې سیمې د خلکو تر منځ ښې اړیکې وې.

د هغه ځای د سیمې خلکو چې دغه سین د هغوی له غرونو څخه راوتلی و د سین د دغه راز ګټو او ښیګڼو څخه بې برخې وو، پدې نه پوهیدل چې څنګه د سین له زیان او خطر څخه ځانونه وژغوري او ګټه ترې واخلي؟ کله به چې د غرونو په څوکو باران وشو نو ددغه څپانده سین اوبه به دومره زیاتې شوې چې د سیمې د خلکو پټي به یې له منځه یووړل؛ فصلونو ته به یې تاوان ورساوه او کله، کله به چې د سین سره سیلاو ملګری شو، نو سین ته نژدې پراته کلي به یې په خپلو څپو ړنګ کړل. د خلکو د کور سامانونو ته به یې لویه خساره ورسوله. د دغې سیمې خلك را ټول شول چې داسې لارې چارې ولټوي چې سین دې ته اړ کړي چې له دوی سره له دښمنۍ نه لاس واخلي او د تاوان پرځای ورته ګټه ورسوي، چا ویل راځئ د سین له لاسه بل ځای ته کډه وکړو یو به وویل راځئ دغو دوه غرونو ته چې دغه سین ترې را وزي زارۍ وکړو چې دغه سین نور راپرې نږدې چې زموږ سیمې ته راشي یو به غږ کړ راشئ چې سین په ډبرو وولو چې وډار شي

او نور له مور سره له دښمنۍ نه لاس واخلي. یو بل به غږ کړ راځئ چې خیراتونه وکړو سین ته ښیرې وکړو چې خدای یې وچ کړي. د دغو ساده ګانو په ډله کښې یو سپین ږیری سړی و چې تر نورو ورته ځان هوښیار ښکاریده او ځان یې د سیمې او اولس مشر باله په خلکو غږ وکړ او وې ویل: تر ټولو غوره داده چې لاړ شو له سین سره مخامخ خبرې وکړو خپله غاړه پرې خلاصه کړو. د خپلو پریکړو نه یې خبر کړو او ورنه پوښتنه وکړو چې ولې یې له مور سره دښمني ده او زموږ له ګاونډې سره یې دوستي ده؛ مور ته زیان رسوي او هغه ته ګټه او خیر؟ څنګه پر مور بخیلي کوي او پر نورو مهربانه دی،او له سخاوت نه کار اخلي؟ دا زموږ ګناه او خطا څه ده، د سیمې د ټولو راټول شوو کلیوالو او د اولس د خلکو د سپین ږیري دغه ګټورې خبرې خوښې شوې او ټولو پریکړه وکړه چې سبابه د کور په سریو، یو سړی سهار وختی همدغه ځای ته راځي چې د همدغو خبرو له پاره څپانده سین ته ورشو او ځان ورسره په ښو او بدو پوه کړو.

سهار د سیمې له هر کور نه یو، یو سړی راغی دومره لوی لښکر ترینه جوړ شو، تابه ویل د کوم پاچا پوځ دی. ټول سین ته ورغلل د سین په غاړه ودریدل د نورو په اجازه سپین ږیري له سین سره داسې خبرې پیل کړې: سینه، سینه، اې مسته او مغروره سینه! دا څو کلونه وشول چې تاله مور سره دښمني را اخیستې ګټه مو ستاونه لیده او د شر او خطر نه دې خلاصیږو نه؛ یو وخت دې زموږ له پلرونو او نیکونو سره دغه ډول دښمني وه، هغوی ته دې زیان رساوه او اوس مور په کرار نه پریږدې؛ مور تاته څه تاوان رسولی او څه بد مو درسره کړي چې له مور نه یې غچ اخلې؟ سپین ږیري خپلې خبرې اوږدې کړې سین ته یې ګواښ وکړ، اې څپانده سینه که چیرې ته له مور سره له دښمنۍ او بدۍ لاس وا نه خلې پوه شه چې ستا د کبر کاسه به مور نسکوره کړو او داسې لارې چارې به درته ولټوو چې تا په ټپه ودروو. سړي خبرې کولې د لاپو پټاکونه یې کار اخیسته او سین هماغسې په شور او زور ښکته را بهیده، هیڅ یې نه ویل خلکو دا فکر وکړ چې سین وډار شو

ځکه چوپ دی. یو ناڅاپه د سین په منځ کښې د یو ګټ د پاسه د سروزرو کب خپل سر راپورته کړ او راغلو خلکو ته یې داسې وویل: زه د سرو زرو کب یم ما ستاسو ټولې خبرې واوریدلې ستاسو یوه خبره هم سمه او ګټوره نه وه، ډیره موده وشوه چې زه د دغه ځپاند سین په تل کښې ژوند کوم ستاسو بد مرغي او بدې ورځې له نزدې نه ګورم د سین نه ستاسو ګیلې بیځایه دي. ستاسو لاپې او پتاکې تاسو ته ګټه او سین ته تاوان نه شي رسولای. دا سین چې همدا اوس ترې ګیلې کوئ او خپل دښمن یې بولئ ډیر مهربان او خیر رسوونکی دی. د سرو زرو کب خپلې خبرې داسې پسې اوږدې کړې: ای خلکو تاسو خپل شمیر او ګنې ګونې ته وګورئ تاسو د پوهې، یو والي او د متو له زور نه کار واخلئ د ګټې په لارو چارو ځان پوه کړئ نو له دغه سین څخه به ډیرې ګټې او ښیګڼې تر لاسه کړئ؛ د ښیرو او ګیلو نه هیڅ نه کیږي. تاسو څو پوه کسان لاړ شئ خپل ګاونډیان وګورئ هغوی څنګه دغه ځپانده سین مهار کړی او تر خپل واک لاندې یې راوستی دی؟

تاسو سر له سباد غره نه لویې ډبرې راوړئ د سین دواړه غاړې پخې او مضبوطې کړئ په فنی او اساسي توګه له سین څخه ویلې بیلې کړئ؛ بندونه و تړئ په ګډه کار وکړئ کیدای شي چې سین تاسو ته د زیان او تاوان پر ځای ګټه ورسوي. د سین لپاسه پلونه جوړ کړئ چې د سین نه پورې او دې خوا خلک په اسانۍ سره راشه درشه وکړي.

خلك د سروزرو د کب خبرو ته حیران پاتې شول. یوه سړي پوښتنه وکړه اې د سرو زرو کبه! دا چې ته له سرو زرو نه جوړ یې سره زر خو د هر چاخوښ دي ته تر اوسه څنګه همداسې پاتې شوې یې او چا نه یې نیولی؟ د سرو زرو کب ځواب ورکړ: لکه ما غوندې د سرو زرو ډیر کبان او نور ارزښتناك ځیزونه د دې ځپانده سین په تل کښې شته خو تر هغې چې تاسو د پوهې خاوندان نه شئ او ستاسو په منځ کښې یو پوه او خوا خوږی مشر او لار ښود پیدا نه شي او تر هغې چې تاسو د کار او زیار لمن و نه نیسئ نو لدغو بدمرغیو څخه ځانونه نشئ ژغورلی.

د سرو زرو د کب وروستۍ خبره دا وه: خلکو لاړ شئ په عمل لاس پورې کړئ د ګاونډیانو د تدبیرونو نه ګټه واخلئ! دا یې وویل بیرته په اوبو کښې پناه شو او خلك هم خواره واره شول.

# بنـارو او توتي

یوه سرې د ماشومتوب له وخت نه له ښاروګانو او توتیانو سره ډېره مینه درلوده؛ نو ځکه به تهوله ورځ د ښارو ګانو او توتیانو په بچیانو پسې هلته دلته لالهانده ګرځیده. د به هره ورځ د دغې مینې له امله د خپل پلار له خوا څو، څو وارې وهل کیده او رټل کیده، خو د ښارو او توتي ساتل، د هغه دا عادت ګرځیدلی او پرېښودل یې ډېر ګران کار و. له چا نه یې اوریدلي وو چې په پلاني ځای کښې د لویو غرونو په منځ کښې یو داسې ښکلی او سمسور ځنګل دی چې په هغه کښې یوازې توتیان، طاؤس او نور ښکلي مرغان ژوند کوي له همدې امله خلك دغه ځنګل ته د توتیانو ځنګل وایي. ځیني خلك د دغه ځنګل د ونو وهل او پرې کول ګناه او وبال بولي. دا هم ویل کیږي چې د جمعې په شپه دغه ځنګل ته له کوه قاف نه ښاپیرۍ راځي. دلته شپه تیروي او سهار وختي بیرته کوه قاف ته ځي. د دې ځنګل د توتیانو له نورو توتیانو سره یو توپیر دادی چې که بچی یې وساتل شي په یو کال کښې داسې په خبرو راځي چې ته به وایې یو ماشوم دی چې دومره خوږې، خوږې خبرې کوي. دغه په ښاروګانو او توتیانو مین د پسرلي په موسم کښې له یو اوږد او ستړي مزل وروسته په پوښتنه، پوښتنه ځان دغه ځنګل ته ورساوه، چې ګوري د یوې هسکې ونې په سر کښې په یوې ځانګې کښې د توتیانو ځاله ده او د توتیانو دوه بچي پکې پراته دي. دغه دوه توتیان به

د یوې میاشتې وو. په دغه وخت کښې د توتیانو مور او پلار چیرته تللي وو، چې خپلو بچیانو ته خواړه راوړي، سړی د توتیانو ځالې ته ور پورته شو او یو بچی یې ترې راواخیست له ونې رابکته شو. هغه بچي چې په ځاله کښې یوازې پاتې شو ځانته ډیر خپه و او په چغیدو یې پیل وکړ او د توتي هغه بچی چې سړي په لاس کښې نیولی و، هم ډیر خواشینی و او خپله ځاله او هغه بل بچي یې په زړه راوریده. کله چې د توتیانو د بچیانو مور او پلار خپلې ځالې ته راغلل ګوري چې یو بچی یې نشته ډیر خواشیني او خوابدي شول د خپل پاتي بچي نه یې پوښتنه وکړه بچي یې ورته په خپلې ژبې دغه دردوونکې کیسه تیره او له دغې خواشینوونکې پیښې نه یې خبر کړل توتیان لاپسې خپه او خواشیني شول له خپلې ځالې نه والوتل هرې خوا ته یې سترګې واړولې خو دا چې سړی د ځنګل نه وتلی و او ډیر لیرې تللی و، توتیانو ته په لاس ورنغی کنه توتیانو غوښتل چې په سړي به ناڅاپه حمله کوي او دواړه سترګې به ورته په ټونګو او منښوکو ړندوي. سړی له یو اوږد مزل نه وروسته ستړی او ستومانه کورته راورسید، په ټوله لاره د توتي ښکلي بچي ته خوشاله و، چې ژر یې کور ته ورسوي او په پنجره کښې یې واچوي. سړي د توتي دغه ښکلی بچی د ځنګل له آزاد ژوند او تازه هوا څخه بې برخې کړ او د مور او پلار نه یې د تل لپاره را بیل کړ، سړي د توتي بچی په یوې ښکلې پنجرې کښې واچاوه او خواړه او اوبه یې ورته په پنجرې کښې ورکول. د توتي بچی په غمونو، غمونو کښې د پنجرې په منځ کښې را لوی شو او ورو، ورو یې په خبرو کولو پیل وکړ، د توتي بچي غوښتل چې د سړي نه پوښتنه وکړي چې ولې یې د خپلې ځالې او مور او پلار له غیږې نه دغې تنګې او وړې پنجرې ته راووړ؟ ژر به یې په زړه کښې د دغې پوښتنې ځواب وګرځیده، له ځان سره به یې وویل: په ځنګل کښې خو د نورو مرغانو بچیان هم وو، هغه یې ولې دغسې بدمرغه نه کړه؛ دا چې توتیان د انسانانو خبرې زده کولی شي نو ځکه زه په دغسې ویر او ماتم وا وښتم. دغه سړی یو کال مخکې د یو لوړ چنار نه د ښاروګانو له یوې

خالې نه د ښارو بچی را اخیستی و او د توتي غوندې يې د خپلې خالې د آزاد ژوند او مور پلار د خوږې غیږې نه بې برخې کړی او د پنجرې بندي کړی وو. د دې لپاره چې د ښارو بچی هم په خبرو راشي نو د ښارو پنجره يې راوړه او له توتي سره يې په څنګ کښې نژدې کښینبودله. سړي په ډیره مینه د توتي او ښارو ساتنه او پالنه کوله او دواړو ته يې ښه، ښه خواړه لکه پسته، بادام او داسې نور ځیزونه راوړل او سات په سات يې ورته اوبه راوړې خو توتي او ښارو دواړه يو ډول په پنجره کښې خپه وو. توتي او ښارو دواړو سړي ته په کرکه کتل او په زړه کښې به يې ورته بدرد ویل او ښیرې به يې ورته کولې. دوې میاشتې وروسته ښارو هم په خبرو راغله او له توتي نه يې د خبرو کولو چل زده کړ. سړی د توتي او ښارو خبرو ته ډیر خوشاله و. توتي او ښارو په خپل منځ کښې د دوه خوږ ژبو ماشومانو غوندې خبرې کولې چې په اوریدونکو او لیدونکو به د شاتو غوندې خوږې لګیدلې. د توتي او ښارو د ننداري او خبرو د اوریدو لپاره د شا و خوا لوی او واړه ډله راتلل. وروسته بیا د وړیانندارې او خبرو د اوریدو پرځای د لیدونکي او اوریدونکي نه سړي یوه، یوه پیسه اخیسته چې سړي ته د شتو او پیسو مدرك په لاس ورغی. یوه ورځ چې د توتي او ښارو پنجرې یو د بل سره نژدې څنګ په څنګ ایښې وې، سړی او بل څوك نه وو توتي له ښارو نه پوښتنه وکړه: ښارو ته پوهیږې چې زه او ته ولې دغه سړي د خپلې خالې، مور او پلار، آزادې هوا او خپلواك ژوند نه يې برخې کړو او په دغه تنګو پنجرو کښې يې بندیان کړو او خپل لاس ته يې کښینولو؟ موږ غوندې نور مرغان هم ډیر دي هغه ولې د دغه سړي د دغه ډول کړاو، تیري او ستونزو نه خلاص دي آزاد او خپلواك ژوند کوي، اوړی سړو سیمو او ژمی تودو ځایونو ته ځي، خوږ او له خوند نه ډك ژوند لري، چیرته يې چې زړه وي هلته الوزي او څه يې چې زړه غواړي هغه خوري. هغه څه شی دي چې موږ يې په دغه کړاو اخته کړي یو؟ ښارو ډیر چورت وواهه ډیر فکر يې وکړ خو د توتي دغو پوښتنو ته يې د منلو وړ ځواب پیدا نه کړ. ښارو چوپ وه، هیڅ يې نه ویل. توتي

بیا ورته وویل: څنګه زما په خبرو او پوښتنو، لکه چې پوه نه شوې؟ ښارو توتي ته
وویل: هو پوه نه شومه. توتي لومړی یو سوړ اوسیلی وایست او بیایې وویل: ښارو که
په لنډه توګه درته ووایم دې پنجرې ته زه او ته خپلې ژبې راوستي یو په دا دومره
لوی کړاو موږه خپلې ژبې اخته کړی یو. آزادي، خوښي او د خپلواك ژوند نه موږ
خپلې ژبې بې برخې کړي یو، تا نه دي اوریدلي چې خپله ژبه هم کلا اوهم
بلاده، موږ په لوی لاس ځانته له خپلې ژبې نه بلا جوړه کړه، د انسانانو ترمنځ یو
متل دی چې وایي: ښې خبرې ښې دي خو چوپتیا ته نه رسي. پټه خوله کښیناستل
تر بیځایه خبرو غوره ده. موږ او تاسو خپله لار پریښې، موږ لوی خدای د دې لپاره
پیدا کړي یو چې د طبیعت او خلقت د ښکلا او ځلاستاینه او لمانځنه په خوږو نغمو
اوزړه خوښوونکیو ترانو وکړو. خبرې کول د انسانانو کار دی موږ او تاسو چې د
انسانانو پیښې کوو او د نغمو او ترانو پر ځای خبرې کوو دا به مو حال وي. ډیر
خلك د خپلې ژبې له لاسه دار ته ختلي او د خپلې ژبې نه ځوړند شوي په ما او
تا هم دغه بدې ورځې او ترخې شپې د خپلې ژبې له لاسه راغلې، نور مرغان چې
چوپه خوله دي خبرې نه کوي د دغو کړاوونو او ستونځو نه بیغمه دي. ښارو
غوږنیولی و او توتي خبرې کولې. د توتي وار چې تیر شو ښارو په خبرو پیل وکړ
وې ویل: توتي ستا ټولې خبرې خوږې او رښتیا دي، موږ باید نور له چوپتیا نه کار
واخلو او خپلو خپلوانو ته سپارښتنه وکړو او دامتل ورته ووایو "مه کوه هغه کار چې
نه دې مور کړی نه دې پلار" ښارو له توتي نه هیله وکړه چې د خپلې پوهې نه
کار واخلي داسي لارې چارې ولټوي چې نور د اسارت او مصیبت له ژوند نه
خلاص شو. توتي ښارو ته وویل: زه به د شپې له ځان سره چورت ووهم، فکر به
وکړم د هوښیارانو له متلونو او وینا وو به استفاده وکړم او د هغو له مخې به دواړه
پریکړه وکړو چې څنګه ځانونه له دغه کړاو څخه وژغورو؟ په دغو خبرو ښارو ډاډمنه
او هیله منه شوه. ورځ لاړه او شپه راغله توتي له ډیر وچورتونو او فکرونو وروسته
له ځان سره پریکړه وکړه چې ښارو ته به وایي نورې به خبرې نه کوو ځانونه به

چوپ نیسو او خپله ژبه به د بلا پرځای کلا ګرځوو. کله چې سهار شو او سړي بیا د ښارو او توتي پنجرې څنګ په څنګ کښېښودلې توتي ښارو ته وویل،چې: موږ خپلې ژبې په بلا کښې ورکړي یو همدغه ژبه باید موږ له دغې بلا نه وژغوري. سرله همدې شیبې به په خولې لاس کښېږدو، چوپتیا به غوره کوو، ځانونه به ګونګ اچوو. ښارو د توتي خبره و منله او دواړو په خپلو خولو او ژبو د چو پتیا مهر ولګاوه. د پخوا غوندې دله دله خلك راتلل چې د ښارو او توتي خوږې او له پند ځخه ډکې خبرې واوري ډیر انتظار یې وایسته خو تولهٔ ورځ ښارو او توتي خبرې ونه کړې. د ښارو او توتي ښښتن د درو درملونه کار واخیست دم او دعایې پکار واچو له خو ښارو او توتي په خبرو را نغله، دواړه ګونګ او چوپ شول. سړي یو میاشت منډې را منډې وکړې چې ښارو او توتي په خبرو راولي. سړی مایوسه شو فکر یې وکړ چې په ښارو او توتي کوم خواړه او دانه بده لګیدلې یا له نظره شوي نو ځکه دواړو له خبرو ولویده ژبې یې ګونګی شوې ما خو دوی د خبرو له پاره ساتلي وو او دومره زیات تاوان ما د دوی د خبرو له امله په ځان منلی و. اوس چې دواړه ګونګ شول، نو خوشي ورته تاوان ولې کوم. غوښه یې هم د خوړلو نه ده ښه او غوره دا ده چې دواړه له پنجرې خوشي کړم او پرځای یې نور وساتم. سړي ښارو او توتي دواړه له پنجرې نه آزاد کړل او دواړه جوړه والوتل او په هوا کښې یې د آزادۍ او خوښۍ نغمې او ترانې وغږولې.

# د بخت ستوري

په پخوا زمانه کښې يو پاچا و چې په خپل ملك او د خلكو په منځ کښې يې ښه نوم او نيك شهرت درلود. په خپلو خلكو ډير مهربان و او د هيواد ابادۍ او د اولس نيكمرغۍ ته يې پوره پاملرنه كوله؛ خو د خپل كور د چاپيريال نه هيڅ خبر نه و او كورنۍ چارو ته يې شاكرې وه نو ځكه يې كورنۍ ژوند ورځ په ورځ له ستونزو سره مخامخ كيده.

پاچا دوه ودونه كړي وو، مشره ښځه يې مړه شوې وه. له مشرې ښځې نه يې دوه زامن وو چې د مشر نوم قمر او د كشر نوم شمس و. همدغه راز يې د كشرې ښځې نه چې ژوندۍ وه هم دوه زامن وو د مشر نوم عنبر او د كشر نوم قمبر و. له قمر او شمس سره يې ميرې ډير بدسلوك او بده رويه كوله خوشې په خوشې به يې ورته بد رد ويل او خپل ميړه ته به يې شيطاني كوله پاچا به يې ورته لمساوه. يوه شپه د قمر او شمس ميرې خپل ميړه (پاچا) ته وويل: زه د قمر او شمس له لاسه ډيره تنګه يمه كه د هغوی له شراوكړاوه ما ونه ژغورې نوزه مجبوره يمه چې زهر وخورم او خپل ځان پخپله ووژنم او يا ستا كور پريږدم او بلې خوا ته لاړه شم. پاچا پدې خبرو له قمر او شمس نه ډير خپه شو، خبرې يې ورسره نه كولې او نه يې ورته د زامنو په سترګه كتل. قمر او شمس پوهيدل چې دغه ټولې كانې د دوی د ميرې دي دا چې قمر او شمس دواړه ډير هوښيار وو، د خپل پلار

او میرې د هر ډول بدسلوك په وړاندې یې له صبر او زغم نه کار اخیست.
یوه شپه د قمر او شمس میرې پاچا ته وویل: زه خبره شوې یم چې قمر او شمس غواړي تا له منځه یو سي او ستا پرځای قمر د پاچاهۍ په ګدۍ کښیني، که ته مخکښې له مخکښې د دوی د دغه ناوړه شوم پلان مخه ونه نیسې نو کورنۍ او ملك به دې له لوی ویر او ماتم سره مخامخ شي پاچا چې دغه ډار وونکې خبرې واوریدې نور هم په قمر او شمس باندې په غوسه شو او غوښتل یې چې دواړه په جیل کښې واچوي. پاچا یوه ورځ له قمر او شمس نه د دغو خبرو د رښتیا او دروغو په باره کښې پوښتنه هم ونه کړه او د خپلې ښځې د دروغو او لمسون نه ډکې خبرې ورته د کاڼي د کرښې غوندې ښکاریدې. د پاچا او زامنو تر منځ اړیکې ورځ په ورځ خرابیدل. پاچا خپلې ښځې دې ته اړ کړ چې په خپل ژوند کښې په شرعي او قانوني توګه له خپل مرګ څخه وروسته د خپلې کورنۍ ټوله شتمني او پاچاهي خپلو نورو کشرانو زامنو عنبر او قمبر ته په واك کښې ورکړي او هر څه دوی ته تمليك کاندې. قمر او شمس د خپل پلار په دغې پریکړې ډیر خوابدي شول دواړو ورونو سلا وکړه چې خپل وطن پریږدي او کوم بل هیواد ته لاړ شي. بله ورځ قمر او شمس په اسونو سپاره شول؛ شمس له خپل ځان سره یوه لویه تیره توره واخیسته دواړه له خپل کور او هیواد څخه د یو بل هیواد په نیت وخوځیدل دواړه په اسونو باندې سپاره تلل، تلل د یوې پراخې دښتې نه تیر شول یوې غونډۍ ته ورسیدل د غونډۍ په لمنه کښې د یخو او رڼو اوبو چینه وه د چینې په غاړه یوه جګه غرنۍ ونه ولاړه وه او پر چینې یې یخ سیوری کړی و. د اوږده مزله او د اوړي د ګرمۍ له لاسه قمر او شمس او د دواړو اسونه ډیر ستړي شوي او تږي شوي وو، نو قمر او شمس له اسونو راکوز شول اسونه یې وتړل دواړه د چینې په غاړه دونې تر یخ سیوري لاندې وغځیدل؛ لږ شیبه وروسته د قمر سترګې پټې شوې او خوب یووړ شمس ویښ و او هرې خوا ته یې کتل او څار یې کاوه چې دغلو په خطروانه وړي. د شمس سترګې دونې پر یو مندره ولګیدې د مندره لپاسه یوه ښارو

او یو توتي څنګ په څنګ ناست دي؛ دواړه په خپلو کښې د خپل کمال او جمال په باره کښې خبرې کوي. توتي له ښارو نه پوښتنه وکړه ستا په وجود کښې څه کمال دی؟ ښارو ځواب ورکړ: زما د وجود کمال دا دی چې که څوك مې وخوري د شپې چې ویده او سهار له خوب نه راویښ شي د اړخ لاندې به یې یو موتی سپین زر پراته وي؛ که دغه زر وپلوري ډېرې پیسې ور نه لاس ته ورځي او دا کار به تر هغو دوام لري چې دا سړی ژوندی وي. د ښارو وار شو له توتي نه یې پوښتنه وکړه: چې ستا په وجود کښې څه کمال دی: توتي ورته وویل: زما د وجود کمال دادی چې هر څوك مې غوښه وخوري پر سربه یې د بخت سیوری وي او پاچاهي ته به رسیږي، هم به د بخت او هم به د تخت څښتن وي. شمس د ښارو او توتي دغه ګټورې او خونده ورې خبرې په غور واورېدې ژر یې دواړه په غشي و ویشتل او ریې بل کړ دواړه یې وریته کړل، قمر یې له خوب نه را ویښ کړ د ښارو او توتي کیسه یې ورته وکړه شمس، قمر ته وویل: وروره دا چې ته مشر یې د پاچاهي ورته یې غوره داده چې د توتي غوښه ته وخورې چې خدای دې پاچاهي ته ورسوي. له دې پېرزوینې او پریکړې سره سم قمر د توتي او شمس د ښارو غوښه وخوړه، قمر شمس ته وویل: وروره ما یو ساعت خوب وکړ ستړ تیامې لیرې شوه اوس ستا وار دی چې ویده شې زه به ویښ ناست یم او ځارَ به کوم د دې خبرې له مخې شمس پریووت او ویده شو. څو شیبې لانه وې تیرې شوې چې قمر ته په ناسته خوب ټالی ورکړې سریې په ځمکه کښیښوده او خوب یووړ.

قمر او شمس دواړه خوب وړی وو او اسونو یې ورته حیران، حیران کتل، ناڅاپه له ونې نه یو خطرناك مار راکښیووت او شمس یې وچیچه د شمس په بدن کښې د مار زهر خواره شول چغې یې کړې قمر په هیبت له خوب نه را پورته شو شمس یې په غیږ کښې ونیو پوه شو چې ورور یې مار چیچلی ژر په خپل اس باندې سپور شو چې له ښار نه خپل ورور ته دارو درمل راوړي او له ځان سره کوم پاړوګر راولي چې شمس دم کړي او د مار زهر تراودې لاندې راولي.

کله چې ښار ته ورسید په ښار کښې د خلکو زیاته گڼه گونه ده. دغه لوی ښار د هیواد پایتخت و. څو ورځې مخکښې پاچا مړ شوی پاچا نه ورور او نه زوی درلوده، چې د ده پر ځای د گدی، د پاسه ناست وای نو ځکه یې د ځنکدن په وخت کښې وصیت او سپارښتنه کړې وه چې له مانه وروسته دې د ښار ټول خلك په لوی او پراخه ډگر کښې راټول شي او زما د ښکار باز دې والوزول شي د هر چا په سر چې کښیناست هماغه سړی دې زما پر ځای د هیواد پاچا و ټاکل شي، د یو وزیر له خوا د پاچا د وصیت سره سم باز والوزول شو، باز راغی د قمر په سر کښیناست خو هیچا دغه نابلد او میلمه سړی د پاچا په توگه و نه مانه، چا به ویل د پاچا د وصیت له مخې همدغه سړی د پاچاهی مستحق دی چا به ویلې خدایزده دا څوك دی؟ موږ یې نه پیژنو نو ځنګه یې خپل پاچا کړو. بیایې والوزوه بیا هم په دومره ډیرو خلکو کښې باز راغی د قمر پر سر کښیناست؛ دغه عمل څو واری سر ته ورسول شو څو واري د دومره ډیرو خلکو په منځ کښې به باز راغی او د قمر پر سر به کښیناست او د بخت ستوری یې په سر وځلیده.

قمر د ښخواني پاچا د وصیت له مخې پاچا شو او ورور یې له یاده وووت. شمس د مار زهرو پړسولی و لاړوندی و له درده یې له خولی زگیروي پورته کیدل، د خدای کړه وو څلور کسان چې په اسونو سپاره وو همدغې چینې ته راورسیدل له اسونو راکوز شول چې یوه شیبه دلته دمه وکړي د څلورو واړو سترگې په شمس ولگیدلې شمس زهرو پړسولی او زگیروي یې له خولې نه وتل، له ښه مرغه له دغو څلورو کسانو څخه یې یو پاړوگر و، د مارانو او ده ورسره وه، مار چیچلی به یې چې دم کړ ښه کیده به.

دغه پاړوگر شمس ته ورنزدې شو پر شمس یې غږ کړ خو شمس له خبرو لویدلی و، یوازې سا یې په بدن کښې کښته پورته کیدله؛ د پاړوگر پرې زړه وسوځید، د شمس په دارو او درملو یې لاس پورې کړ، دم یې کړ د خپلې پوهې او تجربې په وسیله یې د شمس له بدن نه د مار زهر وایستل، شمس روغ شو په

خبرو راغی کښيناسته د پاڅوکر له مرستې او خواخوږۍ نه يې مننه وکړه.

دغه څلور کسان په خپلو اسونو سپاره شول او لاړل. يو ساعت وروسته شمس هم خپله لويه او تيره توره څنګ ته واچوله په اس سپور شو مازيګر هماغه ښار ته ورسيد. د ښار په يوې کوڅې کښې چې هلته کنډرې کنډوالې وې پرې شپه راغله، ماښام يو وزير د ښار د يو نامتو سوداګر لور راوسته او د کوڅې په يوې کنډوالې کښې يې خو شې کړه، د وزير په شمس سترګې ولګيدلې وزير چې د شمس ښکلې ځوانۍ ته ځير شو زړه يې وسوځيد او له شمس نه يې پوښتنه وکړه:

اې ځوانه پدې کنډرې کنډوالې کوڅه کښې څه کوې؟ له دغه ځايه پښې وباسه! شمس لومړی ورته خپله کيسه تيره او بيايې ترينه وپوښتل. دا کوڅه ولې داسې شاړه او کنډرې کنډوالې ده. وزير يو سوړ اوسيلی وايست او وې ويل: د دې ښار په پيغلو خدای په قهر شوی د کوم نامعلوم غره نه يو ښامار د شپې دې ښار ته راځي او هره شپه د ښار يوه پيغله خوري. که ښامار ته دغې کوڅې ته يوه پيغله رانوړل شي نو ټول ښار له خطر سره مخامخ کيږي. نن شپه د ښار د يو لوی سوداګر و اردی چې خپله لور د ښامار لپاره دغې شاړې کوڅې ته راولي، اوس ما دغه پيغله د ښامار لپاره راوستې ده پيغله به همدلته وي او زه بيرته څمه ته هم لدغې هيبتناکې او خطرناکې کوڅې نه بلې خوا ته لاړشه. شمس له وزير نه پوښتنه وکړه:

په دا دومره لوی ښار کښې څوك نشته چې د ښار د پيغلو ژوند له دغه ښاماره وژغوري، دا ښار خو د هيواد پايتخت دی. پاچا د ښامار د له منځه وړلو له پاره ولې اقدام نه کوي. ما ته ښکاري د دې ښار اوسيدونکی ډير ډارن دي چې د ښار اوسيدونکی ورته يو لاس شي د يو ښامار به څه زور وي. وزير شمس ته وويل:

د ډيرو خبرو وخت نه دی ځکه د ښامار د رارسيدلو وخت را نژدې شوی همدومره به درته ووايم چې پخواني پاچا ژمنه کړې وه هر چاچې دغه ښامار له منځه يو وړ او ښار يې د هغه له خطر څخه وژغوره زه ورته خپله لور او د پاچاهي

څلورمه برخه ورکوم خو لا تر اوسه داسې نیکمرغه سړی پیدا نشو چې دغه انعام تر لاسه کړي. نوي پاچا هم د پخواني پاچا ژمنه منلې که څوك دغه ښامار مړ کړي د پخوانی پاچا لور او د خپلې پاچاهۍ څلورمه برخه ورکوي.

له شمس سره داسې لویه توره وه چې بل چانه درلوده، وزیر ته یې وویل ته څه! زه همدلته د ښامار د راتلو لار څارم، یا به زه هم د ښامار خوراك شم او یا به د دې لوی ښار دړارن اوسیدونکي او دا ښکلې او ښایسته پیغلې له ښامار څخه وژغورم! شمس یو ځل بیا له وزیر څخه پوښتنه وکړه: د ښامار د رارسید او کوڅې ته درانژدې کیدلو نخښې کومې دي؟

وزیر په لنډه توګه شمس ته وویل: له ښامار نه څوګامه مخکښې یو خونړۍ باد او د ښامار د رسیدلو شور او ځور راځي.وزیر دا خبره وکړه او په یوه منډه یې کوڅه پریښودله.

څو شیبې وروسته خونړۍ باد او د ښامار د راتلو شور او ځور کوڅه هیبتناکه کړه، ښامار راورسید، شمس خپله توره په دواړو لاسونو کښې ونیوله کله چې ښامار پیغلې ته رانژدې شو او خوله یې د پیغلې د خوړلو لپاره وازه کړه، پیغله وریږدیده له خولې نه یې چیغې پورته شوې، شمس رامنډه کړه او پر سر یې داسې ګوزار ورکړ چې دویم ګوزار ته حاجت پاتې نشو څو شیبې ښامار پورته، پورته ټوپونه کړه اخر یې سر په زمکه کښیښوده او سایې وختله. شمس چې په خپل هوډبر یالی شوی و، ډیر خوشاله و د لوی خدای شکر یې وکړ او له ځان سره یې وویل: زه به د ښامار له غاړې نه د سرو زرو پټۍ خلاصه کړم او سبا به یې پاچا ته د سوغات په توګه یوسم او د دغې لویې پیښې او بري نه به یې خبر کړم. پیغله هم ویده شوه او شمس چې ډیر ستړی و هم پریووت او داسې په خوب کښې ډوب شو چې تر سبا پورې په ځان خبر نه و. خو ډیر هیبتناك خوب یې ولیده چې دغه ستر بری ورته بلا ګرځي. سهار وختي وزیر ځان شاړی کوڅې ته راورساوه چې ګوري پیغله په یو ځای کښې او شمس په بل ځای کښې په خواږه خوب ویده دي او ښامار په

کندواله کښې توتې، توتې پروت دی. د شمس په څنګ کښې د ښامار په وينو سره توره پرته وه هغه يې را واخيسته شمس يې پرې وواهه او داسې يې ټپې، ټپې کړ چې بيايې درغيدو هيله نه کيده، شمس هوښيار و ځان يې مړ واچاوه. وزير شمس پورته کړ او د ځارويو د سرې په ډيران کښې يې ښخ کړ، پيغله په دغې پيښې خبره نه شوه. وزير د شمس او د ښامار په وينو سره توره پاچا ته وښودله او ورته يې په دروغو وويل: ما نن شپه خپل ځان د دې لپاره د خطر په خولې کښې ورکړ چې د ښار خلك په تيره بيا پيغلې دښامار له غمه وژغورم، دا ټول ستا برکت او بخت دی چې ما وکولای شول دغه خونړی ښامار نن شپه له منځه يوسم، دغه راز هځې د پخوانې پاچا په وخت کښې هم ما وکړې خو پخپل هوډ بريالی نه شوم، دا ټول ستا د ښه نيت برکت دی. وزير په خبرو، خبرو کښې (قمر) نومې پاچا ته د پخوانې پاچا وعده ورياده کړه پاچا لاړ لومړی يې پخپلو سترګو ښامار وليد وروسته يې بيا وزير ته د خپلې پاچاهۍ څلورمه برخه واك ورکړ او د پخوانې پاچا لور يې د ده په نامه کړه.

د ښار يو سړي د ځارويو د سرې له ډيران څخه د سرې وړل پيل کړل يو ساعت وروسته په ډيران کښې يو ټپی سړی (شمس) را څرګند شو. سړې ژر (شمس) راپورته کړ په خپل ځادر کښې يې راتاو کړ، دشمس په تن کښې لاسا ښکته پورته کيدله، د شمس داړخ لاندې دوه موتې د سپينو زرو پيسې پرتې وې سړي هغه هم راواخيستې شمس يې کورته راووړ ژر يې د سپينو زرو پيسې په يو زرګر وپلورلې په پيسو يې د شمس دارو درمل پيل کړه، شمس روغ شو، هره شپه به چې له خوب نه پورته کيده، د اړخ لاندې به يې يو موټی سپين زر پراته وو. د کور د خاوند مينه ورځ په ورځ له شمس سره زياتيدله او د خپل کور د يو غړي په سترګه يې ورته کتل، يوه ورځ شمس د کور لپاره ځينې خوراکي مواد اخيستل، ناڅاپه پرې د هماغه وزير چې دی يې په ډيران کښې ښخ کړی و سترګې ولګيدلې. وزير پرې د قاتل نوم کښيښوده او په زندان کښې يې بندي کړ. يوه ورځ لانه وه تيره

شوې چې يو سوداګر پاچا ته راغی ورته يې وويل: زما بېړۍ چې ډېر مالونه پکښې بار دي؛ په سمندر کښې يو لوی نهنګ په ټپه ودرولی کله چې دغسې پېښه را منځ ته شي نو ماته د زندان نه يو داسی قاتل او مجرم راکول کيږي چې د خپل جرم او ګناه له امله اعدام او ياغر غره کيږي دا چې زه پاچا ته د دغو مالونو خراج ورکوم هيله لرم چې تاسو هم له ما سره د پخواني پاچا غوندې مرسته وکړئ.

نوي پاچا(قمر) خپل دغه وزير ته امر وکړ چې سوداګر ته له زندان نه يو داسې بندي ورکړي چې سبا د شرعي پريکړې له مخې اعداميږي.

زندان ته راغی او بې ګناه (شمس) يې په لاس ورکړ، سودا ګر شمس د بېړۍ مخ ته نهنګ ته ورګوزار کړ، نهنګ شمس ژوندی له ستونی تير کړ. مازيګر يو ماهر او نامتو کب نيوونکي يو سيمي جال د سمندر غاړې ته واچاوه، د خدای کارونه و د نهنګ سر په جال کښې بند شو. کب نيوونکي نور کب نيوونکي له ځان سره ملګري کړل او په ګډه يې نهنګ له سمندر نه را وايسته او ګيډه يې ورته څيرې کړه، د نهنګ له ګيډې نه شمس روغ رمټ راووانه.

د نهنګ غوښه د کب نيوونکيو تر منځ وويشله شوه. کب نيوونکي شمس له خپل ځان سره کور ته بوته. شمس ځان پريمنځه نوي او ښکلي کالي ورته کب نيوونکي راوړل. له معمول سره سم به کله چې شمس سهار د کب نيوونکي په کور کښې د خوب نه را ويښ شو، تر اړخ لاندې به يې يو موټی سپين زر پراته وو. د کب نيوونکي ژوند ورځ په ورځ ښه کيده او شمس ته به يې د زړه په سترګه کتل. شمس د وزير له ويرې له کور نه د باندې نه واته. يو ماښام کب نيوونکی ډېر خپه و شمس ترې پوښتنه وکړه: ولې خپه يې او څنګه دې چورت خراب دی؟. کب نيوونکي شمس ته له يو سوړ او سيلي سره ووېل: يو سړی چې نوم يې (قمر) دی له کوم بل وطن نه راغی، پخواني پاچا چې اوس مړ دی وصيت کړی و چې خلك دې راټول شي باز دې خوشی کړي، د هر چا پر سر چې باز کښيناسته هغه به د ده پرځای پاچا وي. دغه پر ديس هم له کوم ځای نه بخت راووست باز د (قمر)

پر سر له څو، څو واري ښكيناسته خلكو خپل پاچا وټاكه، خلك وايي (قمر) د بل وطن د كوم پاچا زوى دى، د پلار نه مرور شوى، د پاچاهى په چارو ډير ښه پوهيږي خو يو بد عادت لري د ښار پر اوسيدونكو يې وار ايښى چې د شپې ورته خوږه كيسه او نكل وكړي قمر پاچا د كيسې د اوريدو لپاره خپل وزيران، سوداګر او نور مخور كسان را غواړي. نن شپه د كيسې وار زما دى يو خو زما كيسه نه زده او بل زه يو كب نيوونكى غريب سړى يم د پاچا، وزيرانو او نورو مخورو خلكو په مخكښې كله خبرې كولاى شم ځو څكه خپه يم.

شمس چې د كب نيوونكي خبرې واوريدې په زړه كښې خوشاله شو چې قمر خو دده د ورور نوم دى. شمس كب نيوونكي ته وويل: ته مه خپه كيږه ستا پر ځاى به زه لاړ شم پاچا ته به داسې كيسه وكړم چې سبايې اوازې او انګازې په ټول ښار كښې خورې شي، ماښام شمس په خپلې ځيرې كښې په مصنوعي توګه بدلون راووست چې څوك يې په اصلى ښه ونه پيژني. شمس د كيسې لپاره لاړه او كب نيوونكى له خوشالى نه په كاليو كښې نه ځايېده.

شمس د پاچا په دربار كښې په يو څغلنده نظر ټول رابلل شوي كسان له سترګو تير كړل هغه پاړوګر يې وليد چې شمس يې له مرګ نه ژغورلى و. هم يې هغه وزير وليد چې څو واره يې شمس د مرګونو په خولې كښې وركړى و او د ده سوبه او له ځانه تيريد نه يې د خپل ځان كړې وه. هغه سوداګر- چې يې شمس د نهنګ مخې ته ګوزار كړى و له سترګو تير شو، په پاچا يې سترګې خوږې شوې، ويې پيژانده چې (قمر) او د ده ورور دى. شمس په زړه كښې ډير خوشاله شو پاچا ته يې وويل: زه به تاسو ته داسې خوږه او ترخه كيسه وكړم چې تاسو ټول ورته هك پك پاتې شئ، زما كيسه د خوند او پند نه ډكه كيسه ده خو د كيسې له اوريدونكو څخه هيڅوك په هيڅ پلمه او بهانه د كيسې دويلو په بهير كښې د باندې نشي وتلاى كه څوك كوم ضرورت لري همدا اوس دې لېرې كړي.

پاچا د شمس خبره ومنله او امر يې وكړ چې هيڅوك دې د كيسې ترپاى

ته رسیدوله دې مانۍ څخه د باندې نه وزې وګورو چې دغه ځوان موږ ته څنګه کیسه کوي؟

شمس له هغه ځای نه د خپل ځان، د خپل ورور، د خپل پاچا پلار، خپلې مېرې، د چینې په غاړه د توتي او ښارو دویشتلو او د هغوی د غوښې د خوړلو، د شمس د مار د چیچلو، د قمر د پاړو ګر پسې د تلو، د څلورو کسانو راتلل او د یو پاړوګر له خوا د مرګ څخه دده ژغورل، بیا د شمس دغه ښارته رارسیدل او د شپې د ښامار وژل او سهار د وزیر له خواتښې، تښې کیدل او د سرې په ډیران کښې ښخول. دلته وزیر پاچاته ودریده- په داسې حال کښې چې پرمخ یې له شرم او ویرې نه خولې راماتې وې-او وې ویل چې د درې دقیقو لپاره دې ورته اجازه ورکړه شي، وزیر غوښتل چې له ښار نه وتښتي نو اجازه یې ورنه کړه. شمس کیسه کوله او پاچا (قمر) ورته ژړل. شمس له ډیران څخه د ژوندي را ایستل کیدلو د همدغه وزیر له خوا زندان ته اچولو، بله ورځ سوداګر ته د نهنګ د خوړلو لپاره د وزیر او سوداګر په غوښتنه د پاچا له امر سره سم د داسې بندي ورکول چې اعدام ته برابر وي او په پای کښې د بې ګناه شمس نهنګ ته اچول او بیا د نهنګ له ګیډې روغ رمټ راوتل او بالاخره د کب نیوونکي پر ځای د کیسې له پاره دلته راتلل. سوداګر هم غوښتل چې ووزي خو اجازه ورنه کړه شوه. شمس خپل او د خپل پاچا شوي ورور (قمر) سرګذشت او سترګو لیدلی حال پای ته ورساوه، مصنوعي ځیره یې په اصلي ځیرې واړوله، یو بل ته یې وکتل، قمر را پورته شو، شمس یې په غیږ کښې ونیو، ښکل یې کړ، ورته یې وژړل، وزیر او سوداګر یې د قانون منګولو ته وسپارل، پاړوګر یې د وزیر پرځای وټاکه، هغه ښاري بزګر چې شمس یې له ډیران نه را ایستلی و او کب نیوونکی یې ځانته راوغوښتل، د نیکۍ په بدل کښې یې ورسره نیکي وکړه. قمر او شمس دواړه د نیکمرغۍ او خوښۍ څښتنان شول، د صبر او زغم دونې میوه یې وخوړله، قمر د یو پاچا په توګه خپل پلار ته ځوکسان د ډیرو لوړو او غوره سوغاتو نو سره ولیږل.

# د ژبې تپ

د (زمرك) او (زمري) تر منځ هغه وخت د يوې خوړې انډيوالۍ او دوستۍ اړيکي پيدا شول چې په زمرك په خپل کلي کور کښې د غريبۍ تر خې او بدې شپې او ورځې راغلې. زمرك دې ته اړ شو چې يو خطر ته غاړه کښېږدي، غره ته لاړ شي، لرګي راوړي او کلي ته په نژدې ښار کښې يې په چاوپلوري او په پيسو يې د کور لپاره خواړه او نور داړتيا وړ څيزونه واخلي.

زمرك زړه لوی کړ، د غره خوا ته رهي شو. په غره کښې يو لوی او خطرناك زمري ژوند کاوه، د زمري له ويرې هيڅوك غره ته نشول تللی، ځکه زمري څو ځلې په دغه غره کښې څو کسان مات کړي او خوړلي وو. زمرك غرمه غره ته ورسيده او ديوې وچې ځيرۍ د ونې د ښاخکو او منډانو په وهلو يې لاس پورې کړ. زمري د زمرك د تبر وهلو غږ واو ريده ډير په غوسه په زمرك پسې په يوه منډه راورسيد. غوښتل يې په زمرك توپ کړي او ويې خوري. البته د زمرك به لا په دنيا څو ورځې خواړه اوبه پاتې وې د زمري په زړه کښې وګرځيدل: دا سړی يا د خپل ژوند نه تنګ شوی او بيزار شوی او يا ډير زړه ور دی نو له زمرك نه يې د هغه د نوم او غره ته د راتللو انګيرنه وپوښتل: نوم دې څه او ځنګه دلته راغلې يې ته له مانه خبر نه وې؟ زمرك غاړه تازه کړه په داسې حال کښې چې تبرګی يې په اوږو ايښی و، زمري ته په ډيرې زړه ورتيا وويل:

نوم مې ستا نوم ته ورته دی یعنی نوم مې (زمرك) دی، غره ته غریبی او بدې ورځې راوستم، له تانه ښه خبر یم چې د دې غره واکمني ستا په لاس کښې ده، ستاله ویرې څوك دې غره ته نشي راتلای، مازړه لوی کړ ومې ویل کیدای شي چې زمری چیرته په چکر تللی وي او یاد مخامخ کیدو په وخت کښې په مازړه وسیځی او ومې نه خوري، برسیره پردې زه یو ډول ناروغي لرم چې د طبیبانو له لاربښوونې سره سم هره ورځ او هره شپه یوه لپه ترخه زهر خورمه ټول وجود مې زهر ګرځیدلی که ته مې وخورې ستا ژوند او روغتیا ته به ډیر لوی تاوان او خطر ورسوي، له ما سره د ځان غم نشته ستا د ژوند او روغتیا غم راسره دی.

زمري چې د زمرك خبرې واوریدلې نو په زړه کښې یې تیر شول چې یو خو یې د ده غوندې نوم دی، بل غریب دی او هم یې ټول بدن له زهرو ډك دی راځه له خوړلو یې تیر شه اندیوالي او اشنایي ور سره وکړه، نو زمرك ته یې وویل: سر له همدې شیبې زما او ستا ملګرتیا او اندیوالی شوه، زه غواړم د انسانانو د ملګرتیا او اندیوالی خوند هم وګورم. ته کولای شې چې هره ورځ په ډاډه زړه دې غره ته راشې او خپل کور ته د وچو لرګیو یو غټ پنډ له ځان سره یوسې.

زمري له زمرك سره دا وعده هم وکړه: کله چې ماهوسی او یابل کوم ځاروی چې تاسو یې هم غوښه خورئ ښکار کړ تر هغې به یې له ځان سره ژوندی ساتم څوته راشې او په چاکو او یا چړې یې حلال کړې څومره غوښه چې ستا پکار وه له ځان سره یې د خپلې کورنی نورو غړو ته یوسې.

زمرك د زمري په دې خوږو خبرو او زړه پورې وعده ډیر ډاډه او خوشاله شو، له زمري څخه یې مننه وکړه، د زمري د عمر اوږدوالی یې وغوښت. زمرك د زمري په اجازه یو غټ پنډ لرګي په شا کړل او د کور خواته راروان شو. د زمرك ښځه او ماشومان د ویرې او اندیښنو په سین کښې لاهو وو، دا ګمان یې نه کاوه چې زمرك به د زمري نه ژوندی پاتې شي، ټولو په حیرانتیا لارې ته کتل او په ډیرې بې صبری یې د زمرك د راتللو انتظار ایسته.

کله چې زمرك له ورايه راښکاره شو بچيانو يې مخې ته ورمنډې کړې.
زمرك چې کورته راورسيد په کور کښې يې خوشالي شوه انديښنو او وسوسو کډه وکړه.

زمرك لږکي بازارته يو وړل، خرڅ يې کړل، کور ته يې ټول داړتيا وړ خوراکي مواړ راوړل. زمرك خپلې کورنۍ ته د زمري د مهربانۍ، انډيوالۍ او خوږو وعدو کيسه وکړه، د کور لوی او واړه يې ډېر خوشاله شول، او په ټولو شپه په خوشالۍ تيره شوه، زمرك بياهم پړی تر ملا تاو کړ، تبر يې په اوږه کړ، لمرخاته د غره په لور وخوځيده، غرمه غره ته ورسيد، زمری ورته راغی دواړو جوړتازه سره وکړل. زمري يوه هوسۍ نيولې او ژوندۍ يې ساتلې وه. زمرك چې لږکي پوره او پنډ کړل نو زمري ورته هوسۍ راوړه. زمرك په يوې تيرې چړې هوسۍ حلاله کړه، زمري د هوسۍ وينې وڅښلې، زمرك د هوسۍ نه يو ادوم راغوڅ کړ او نوره يې زمري ته پريښودله. زمرك نور هم ډاډمن شو او د زمري وعده او انډيوالي ورته رښتيا ښکاره شوه، په زړه کښې يې خوشالۍ غزونې وکړې او له زمری نه يې مننه وکړه.

زمرك له زمري سره مخه ښه وکړه کور ته راروان شوله ډيرې خوشالۍ نه يې د ستړتيا هيڅ احساس ونه کړ، کور ته راورسيد، لږکي او غوښه يې راوړه، لږکي يې بياهم بازار ته يو وړل، خرڅ يې کړل، په پيسو يې ځينې ضروري شيان واخيستل.

زمرك به هره ورځ په لږکيو پسې ته او د زمري د پيرزوينې او خواخوږۍ نه برخمن کيده. زمرك په لنډه موده کښې د ښه ژوند څښتن شو، غريبۍ يې له کورنه کډه وکړه، نيکمرغي او خوښۍ يې په برخه شول. زمرك زمري ته د خپل کور نخښه او پته ورکړه څو وارې يې ترې هيله او غوښتنه وکړه چې د زمرك ميلمه شي خو زمري ونه منله.

د زمرك او زمري له دوستۍ او انډيوالۍ نه ټول کليوال خبر شول، ټول

کليوالۍ له زمرك نه د زمري له امله ډاريدل، هيچا ورته څه نشو ويلای.

د ښخوا غونډې هيچا پرته له زمرك نه د زمري له ويرې غره ته د تللو جرأت نه درلود او زړه يې نه نيوه.

غره ته د زمرك تلو او راتلو او د زمري له خوا ورسره د نيکۍ او ښيګڼې موده يو کال ته ورسيده.

يوه ورځ زمرك په لار کښې د اوړي ګرمۍ وواهه او ډير کلك ناروغ شو څو ورځې غره ته لاړ نه شو او په کور کښې د ونې لاندې سيورى ته په کټ کښې پروت و او ميرمن او ماشومان يې ورته خپه او خواشيني ناست وو.

غره ته د زمرك نه ورتلو زمرى ډير انديښمن کړ. له ځان سره يې پريکړه وکړه او په ځان يې هر ډول کړاوونه ومنل چې کله د شپې توره تياره شي او د خلکو له خوايې د ليدلو ويره او خطر کم شي نو له زمرك کره به ځي او د زمرك پوښتنه به کوي چې ولې غره ته نه راځي؟ آيا ناروغه دى او ياد ده نه خپه شوى؟ زمرى د شپې په توره تياره کښې له غره نه د زمرك د کور په نيت راوخوځيد، په ډيرې خوارۍ يې د زمرك کور پيدا کړ، کور ته په يو چل ورننووت، ګوري زمرك په کټ کښې پروت دى، زګيروى يې له خولې خيژي. د زمرك په زمري سترګې ولګيدلې، سترې مه شي يې ورته وکړه، زمرى د زمرك په ناروغتيا ډير انديښمن شو د لازياتې خواخوږۍ د څرګندولو په خاطر زمرى زمرك ته ورنژدې شو، سر يې ورتيټ کړ، زمرك چې ډير لنډ فکرى او لنډ پارى و نو زمري ته يې وويل: خوله دې اخوا کړه ډير بد بوى ترې پورته کيږي، ستاد ناولې خولې بوى زما زړه بد، بد کړ.

زمري چې د زمرك دغه په زهرولړلې او ترخې خبرې واوريدلې، په زړه کښې ډير خوابدى شو، د غوتر خواو زهر جنو خبرو يې د زړه د پاسه ټپ جوړ کړ، په زړه کښې يې تير شول: په انسانانو کښې ځينې کسان څومره بې وفا او لنډ فکري دي. زمري هيڅ ونه ويل او د زمرك د کور نه خپه او خواشينى راووت په چورتونو، چورتونو کښې غره ته راورسيد.

زمرك پوه نه شو چې زمری ترې خپه او مرور شو. څو ورځې وروسته زمرك روغ رمټ شو، د پښوا په څیر د غره خواته روان شو، غره ته ورسید، زمری ورپسې راغی په غوسه یې ورته وویل:

زمرکه تبر دې پورته کړه ماپه سر ووهه؟

زمرك د زمري دې خبرې حیران کړ وډار شو، د زمري خبره ورته یوه ټوکه ښکاره شوه نو ځکه یې د زمري خبره و نه منله او ورته یې وویل:

لاس مې دې مات شي چې تا ته به تبرګی پورته کوم تاچې په سر وهم ولې خپل سر نه وهم.

زمری په غوسه شو زمرك ته یې وویل:

که زما خبره ونه منې او سر غړونه ترې وکړې همدلته دې خورم او له منځه دې وړم.

زمرك وډار شو د زمري خبره ورته رښتیا ښکاره شوه، تبرګی یې پورته کړ زمري یې پر سر وواهه، د زمری په سر کښې لوی ټپ جوړ شو، لپې- لپې وینې ترې پر زمکه توی شوې، زمکه د زمري پر وینو سره شوه. زمري زمرك ته وویل:

اوس نو چې په کومه راغلې یې پر هماغې لاړ شه، یوه میاشت وروسته بیا غره ته راشه، که رانغلې زه در پسې درځم او له ټولې کورنۍ سره دې له منځه وړم او که راغلې هیڅ درته نه وایم. یوه میاشت پوره شوه، زمرك له ډیرې ویرې بیا هم غره ته لاړ. زمری ورته راغی، خپل سر یې زمرك ته وښوده او ورته یې وویل: زما د سر هغه ټپونه چې ستا تبرګي پرې جوړ کړي وو په غور وګوره چې آیا شته او که له منځه تللي دي؟

زمرك له ډاره لړزیده او خپل ځان یې په هیڅ شمیرلی و، په وارخطا لهجه یې زمري ته وویل:

ما خو ستاسر ته په ځیر، ځیر وکتل ما پکښې کوم ټپ ونه لیده. زمری په غوسه زمرك ته وویل:

زما په سر کښې ستا د تبرګي تپ جوړ شو او اوس يې هيڅ نخښې نشته خوستاد ژبې او ستا د ترخو خبرو تپ لاتر اوسه زما د زړه د پاسه لاهماغسې ناسور شته او نه دی جوړ شوی، چې زه ژوندی يم ستاد خولې او ترخو خبرو تپ به زما په زړه وي. ته د وژلو وړ يې زه دې ځکه نه وژنم چې خلک به راپورې خاندي او خبرې به راپسې کوي چې د زمري څومره ناځوانه دوستی وه، ما اوريدلي وو چې په انسانانو کښې ځينی کسان ډير بې وفا دي؛ يو له هغوی نه ته يې. ته د دوستۍ او نيکۍ وړ سړی نه يې، ځه کورته دې لاړ شه بيادې په دې غره کښې ونه ګورم.

زمرک په خولو کښې ډوب، څوړند سر د کور خوا ته خواشينی را روان شو.



## د لیکوال پېژندنه:

نوم : حبیب الله زړه سواند شینواری

د پلار نوم : اروانباد عمرا خان.

زوکړه : ۱۳۲۱هـ.ش. د ننګرهار د هسکې مېنې اولسوالي.

زده کړه : د شینوارو د شپولې ښوونځی، حربي ښوونځی، حربي پوهنتون. دوه ځلې هندوستان، چکوسلواکیا.

دنده : متقاعد

## چاپ شوي اثار:

- لېونی (د لنډو کیسو مجموعه).
- ننواتې (د شعرونو مجموعه).
- سپینه ډوډی (د ماشومانو له پاره فولکلوریکې کیسې- له انګرېزي نه ژباړه).
- ارمانونه (د شعرونو مجموعه).
- مرور ماښام (د شعرونو مجموعه).
- د ماشوم غږ (د شعرونو په ژبه درسي مرستندوی کتاب).
- د ګلانو سړی (د ماشومانو له پاره فولکلوریکې کیسې- له انګرېزي نه ژباړه).
- شعرونه شوګیرونه (د شعرونو مجموعه).
- سپینه کوتره (همدا کتاب).

